# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست دوې مياشتنۍ خپرونه

مړ ملت د مرګ له خوبه را ويښيږي
چي ميړونه په رښتيا ورته ږغيږي
د مسيح په دود احيا کاندي، ميړونه
په آواز يې اولسونه ژوندي کيږي

(لروابناد علامه حبيبي)

خلورم کال لومړۍ گڼه (وری ـ غویی) در بیمه دوره پرله پسې دوه ویشتمه گڼه ۱۳۸۴ ل کال



احمدشاه ابدال د سترتابه پر لاري

د استاد پسرلي شعرونه او په هغو کښي پښتو نيګه لغتونه

وجدان يا ضمير

سونا بي بي

په کندهار کښي د کندهار خبري

# قرآني مرغلري

بسم الله الرحمن الرحيم

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ

(صدق الله العظيم)

(الانعام) آیت (۱۱)

**ژباړه**:- و وايه (اې محمده! دوی ته که دوی نه وي قائله په هلاک د پخوانيو قرنو) و گرځئ تاسي په ځمکه کښي بيا و گورئ. چي څرنگه ؤ عاقبت (خاتمه) د دروغجن کوونکو (درسولانو).

**تَفسير**:- يعني د ملکونو د سېر او سياحت او گرځېدلو - او د تباه شويو اقوامو د آثارو له کتلو څخه وروسته که د عبرت په نظر سره ماضي واقعاتو ته و گورئ! نو د هغو اقوامو انجام به تاسي ته صاف درښکاره او څرگند شي چي د انبياؤ تکذيب ته يې ملاوي تړلي وې - په همهغو يې قياس وکئ ! کله چي د مکذبينو حال هغسي شو ، نو د استهزاء کوونکو حال به څرنگه وي؟.

---

**د پښتي شرح**:- د کندهار د خواجه ملک په سيمه کښي د ارغنداو د ډنډ سوو اوبو وېش ځای.

# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله


مؤسس : محمد ولي خلمی

سرپرست چلونکی : عبدالمجید بابی

**کتنپلاوی :**

داکتر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، عبدالکریم طالب رحیمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجید بابی

**کمپیوټر چاري**

مطیع الله روهیال

**بیه**

هیواد : ۳۰ ـ افغانۍ

پاکستان : ۲۵ ـ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۱۰ امریکایي ډالره

**کلنی ګډون :**

هیواد : ۱۲۰ ـ افغانۍ

پاکستان : ۲۰۰ ـ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۸۰ ـ امریکایي ډالره

**پته**

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست

علامه حبیبي ... واټ

د کندهار مجلې دفتر

تلیفون : ۳۰۰۱۴۴۰

ګرځنده : ۰۷۰۳۰۰۰۲۴





د امتیاز څښتن : د اطلاعاتو، کلتور او ګرځندوی ریاست

دریمه دوره

څلورم کال ، لومړۍ ګڼه ـ پرله پسې دوه ویشتمه ګڼه

وری ـ غویی (حمل ـ ثور)




## په دې ګڼه کښې




Kandahar_Majala@hotmail.com

بسم الله الرحمن الرحیم

## سرلیکنه

# نوی کال او نوي هیلي

زموږ خوږېدلی او کړېدلی ولس چي د کلونو کلونو نابرابره جګړې او د جګړو څخه رامنځته سوو بې شمېره ستونزو او ناخوالو د هغوی د بېوزلي ژوندانه ټولي مادي او معنوي ښېګڼي له يوه مخه د خاورو سره خاوري کړي او د خپلو او پردو په لاس په ډېره سپين سترګي ترې لوټ او تالان سوي دي، په همهغسي بېوزلي کښي دا دی د څه لنډي مودې راپدېخوا د سوکاله ژوندانه په هيله د اغزو څخه د ډکي لاري په کړلېچنو کښي د پيل سوي يون په لړ کښي يو بل نوي کال ته خپله بېواکه او بې سېکه غېږه پرانيزي.

زموږ خلکو ته به دا کال هغه مهال نېکمرغه او د خوښيو او ښېګڼو څخه ډک وي چي د هغه هره ورځ د نن څخه ښه او د سولي لمر يې غرونه، رغونه او آن دا چي د دې هيواد په بېلابېلو ګوټونو کښي د بېلابېلو ميشتو پرګنو د نارينه و، ښځو، ورو او زړو ګرومجن او د غمونو څخه کوتلي زړونه پخپلو نوراني لاسو لمس او بيا يې د ځان غوندي روښانه وګرځوي.

څو ټوله د ټولو سره د ملي پخلاينې او ملي يووالي په سېېڅلي لاره د خپلو مېړنيو پلرو او نيکونو غوندي د خپلو ځانو او خپل هيواد د تاريخي برم د بيا را ژوندي کېدو په هيله رهي سي. او هغه محدود او تړلي ګامونه چي د بېوزلي، بې کوري، بې اوري، بېوسي او بېلابېلو محروميتونو د ليري کېدو له پاره پورته سوي دي څه نور هم پياوړي او غښتلي سي او په دې توګه ټول ټولنيز رنځونه يو په بل پسې جوړ او روغ سي. او ورځ تر ورځې د سولي د سرتاسري کېدو او د ملي پخلاينې د بشپړه ليدو او کتو تر پولي ځانونه ورسوو او په دې هيواد کښي د ميشت مېړني ولس سوګند خوړلو دښمنانو ته او د دوی شومو او ناولو نيتونو ته داسي مرګوني ګذارونه ورکړو چي تر ابده يې په ککريو کښي پر ناولو مغزو تبه سپره وي.

لا تر اوسه يې ماغزه پر قرار نه دي
چا چي ما سره وهلی سر په سنګ دی

هو ! هر کله که په پوهه، ځيرکتيا او افغاني درايت سره دا شوم لاسونه لنډ او ناوړه کاته ړانده سي نو هيواد به د سوکالۍ پر لور وړاندي تګ د نن څخه سبا او د سبا څخه و بلې ورځې، بلې اونۍ، بلې مياشتي او بل کال ته نور هم وغځوي او ډېر ژر به د خپلو موټو، د خپل اصيل افغانيت او خپل اسلامي عقيدې په برکت خپل د تېر برم، تاريخي روښانه هويت او څرګند موجوديت تر منلو پولو پوري ځانونه ورسوي.

دا چي نوی کال به د همدې ښېګڼو له پاره وړ کال وي او که يا؟ دا خپله د افغان مېړني ولس په هوښيارتيا او ځراکت پوري اړه لري، د هوښيارو ولسونو يوه ورځ د بلي څخه ښه او د ځيرکو او پوهو تېرونو نن تر سبا ډېره ښکلې او ډاډمنه وي. نو په نوي کال کښي که زموږ خلک د تيرو ترخو او ګنډيري تجربو څخه د څه ويښتيا لوست تر لاسه کړی وي او پرون يې ځان ته توره او ناوړې ګڼلې وي او د هغه څخه يې د ژغورني په تکل خپل ځان، خپل ذهن او خپل ګرېوان ته تکان ورکړی وي او د پرون د جګړه ايزو سرو لمبو او د باروتو د تورو لوخړو سره کوم چي د دوی ټول مادي او معنوي شته پکښي تالان سوي دي په سرلوړي مخه ښه وکړي. نو خود به يې نوی کال او په دې کال کښي هر ګړی، هره شېبه، هره ورځ، هره اونۍ او هره مياشت نېکمرغه وي او لا به يې د ټولنيز پرمختګ د بېلابېلو اړخونو په لور چټک او اغېزمن ګامونه اوچت کړي وي.

**په همدې هيله**

**اداره**

# ژوند او پسرلی




ارواښاد مولانا محمدشاه ارشاد

د شپو ورځو تګ او راتګ، د فصلونو اوړېدل او را اوړېدل د زماني یو طبیعي قانون دی او د خدای ﷻ د بالغه حکمت او پوره قدرت له نښانو څخه ګڼل کیږي. شپې ورځې، میاشتي او کلونه وخت په وخت خپلي بڼي بدلوي او د بصیرت خاوندان پند او عبرت تري اخلي، لکه چي قرآن کریم فرمایي:

"ان فی خلق السماوات والارض واختلاف الیل والنهار لایات الاولی الالباب الذین یذکرون الله قیاماً وقعوداً و علی جنوبهم و یتفکرون فی خلق السماوات ولارض ° ربنا ما خلقت هذا باطلا ° سبحانك فقناعذاب النار"

یعني په رښتیا چي د آسمانونو او ځمکي په پیدایښت او د شپو ورځو په اختلاف کي د خدای ﷻ د قدرت نښي او نښانې پرتې دي او د عقل او بصیرت خاوندان پند او عبرت ترې اخیستای سي، هغه هوښیاران چي په ولاړه او ناسته او ملاسته خپل خدای ﷻ یادوي او هیڅ وخت خپل خالق او پرودګار له یاده نه باسي، هغه هوښیاران او پوهان چي د هستۍ او خلقت کتاب تر کتني او مطالعې لاندي نیسي او د آسمانونو او ځمکي په خلقت کي تفکر او تدبر کوي او دې بې سره او بې سامانه جهان منظم او نظام ته ګوري چي لمر او سپوږمۍ، ستوري او کهکشان ګرځي راګرځي، او په منظم ډول پسرلی او اوړی، منی او ژمی ځي او راځي او هر څه د یوه منظم قانون تابع او پیرو لیدل کیږي، نو د بصیرت خاوندان وایي چي:

اې زموږ پرودګاره!

تا دا جهان په باطله او عبث پیدا کړی نه دی او نه په اتفاقي صورت منځ ته راغلی دی، هر تغیر او تحول چي په دې جهان کي راځي هغه ستا د ګلي ارادې او طبیعي نظام تابع دي او په زرګونو فلسفې لري چي د عقل او پوهني خاوندان عبرت ترې اخلي، د پسرلي وږمې او د پسرلي د سحر نسیم که خوبولي غوټۍ له درانده خوبه راویښوي او لا که ګلان په ډکه خوله خندوي نو نورو نباتاتو او جماداتو ته هم طراوت او تازه ګي بخښي او د نشو او نما له پاره یې چمتو کوي، د پسرلي د شپو ورځو

له خوشګواري هوا څخه هر څوک او هر څه د خپل فطري استعداد په اندازه خوند او بهره اخلي، هر څوک د خپل ذوق په مطابق تعبير ترې کوي، که رندان يې د مستۍ او خوښۍ شپې ورځې ګڼي، صوفيان يې د جنت د خوشګواري هوا نمونه بولي. دهريان او منکران يې که د طبيعت د مظاهرو جمال بولي خدا پرستان او موحدين يې د الهي قدرت د کرشمو او جمال مظهر ګڼي. صوفيان او د الهي ميني مستان په بله نګاه ورته ګوري او د الهي جلال او جمال د قدرت او معرفت درس ترې اخلي:

برگ درختان سبز، در نظر هوشيار
هر ورقش دفتريست معرفت کردگار

هو ! دا د عشق او مستۍ ورځې دي، خو معشوقې او د مستۍ وسايل فرق سره لري، څوک د يار جمال په پياله کي ګوري او څوک يې د ذکر په حلقه کي، څوک د ګل له تماشې نه خوند اخلي او څوک د اور له سرو لمبو، رحمان بابا څه ښه وايي:

پتنګانو له په اور کي خدای ورکړی
هغه عيش چي يې بلبلې په ګلزار کا

عبدالقادر خان خټک هم په دې مورد کي څه ښه فرمايي:

پتنګانو ته جلوه وکـــړي په اور کي
بلبلانو ته ښکاره سي په نسرين کي

هو ! معشوقې فرق لري. د چا دا ناپايداري او زودګذري وي او د چا دا دوامداري او وفاداري. بلبل او بورا د ګل له رنګ نه خوند اخلي او څوک بيا د ګل په بوی خپل مشام تازه کوي، مګر د عميق نظر خاوندان د ګل او د هغه د رنګ او بوی عشق او مستۍ مبدې او خالق ته ګوري، ظاهر بينه نقش او نګار ستايي مګر د ژور بصيرت خاوندان د نقاشۍ د کمال او جمال د قدرت د آثارو په درياب کي غوټې وهي او د معرفت او فضيلت ګوهر ترې راباسي. خوشحال خټک څه ښه وايي:

که دي سترګي د عرفان سته مبارک سه
د ګلزار په ننداره چي استـــقلال کـــړې
ګل ته هسي رنګ او بوی ورکړی چا دی
د لالـه د ګل چا پاڼي هسي لال کـړې؟

کوتاه بينه د صنعت له ښکلا نه خوند اخلي او د بصيرت خاوندان د صانع د قدرت جلال او کمال ته مبهوت او حيران پاته کيږي.

ما بيرون را ننګريم و قال را





ما درون را بنگرم و حـال را

د طراوت مظاهره، د طبيعت ښکلاوي، د پسرلي وږمې او د سحر نسيم هر يو په خپل وار د الهي جمال د مظاهرو نمونې دي او د هغې جلوې د تجلياتو د ښکلا او جلا محوه او مجذب ښکاري، کومه چي د خلقت او پيدايښت مبدأ ګڼل کيږي، په يوه قدسي حديث شريف کي راغلي دي، چي پاک خدای ﷻ فرمايي :

"کنت کنـــزاً مخفياً فاحببت ان اعرف فخلقت الخلق"

يعني زه يوه پټه خزانه وم او خوښه مي سوه چي وپيژندل سم نو عالم او جهان مي پيدا کړ . په يوه آيت شريف کي فرمايي :

"و ما خلقت الجن والانس الا ليعبدون"

يعني ما پېريان او انسانان خاص د دې له پاره پيدا کړي دي چي زما عبادت وکړي او ما وپيژني .

ځينو مفسرينو د ليعبدون کلمه په يعرفون ترجمه کړې ده چي په دې اساس عشق او مينه اولاً په بل عبارت د الهي معرفت او پېژندګلوي مينه د دې جهان د خلقت مبدأ ګڼل کيږي او له همدې کبله جهان پيدا سوی دی. لکه چي رحمان بابا فرمايي :

دا دنيا ده خدای له عشقه پيدا کړې
د جـــمله و مخـــلوقاتو پـــلار دی دا

که موږ د بشر د خلقت او پيدايښت قصې او داستان ته ځير سو دا به راته ثابته سي چي بشر د جهان د تعمير او پيدايښت او ښکلا له پاره پيدا سوی دی او د ديني وظايفو په څنګ کي بايد د خپل ژوندانه چاري هم مخ په وړاندي بوزي .

کوم وخت چي پاک خدای ﷻ د انسان د خلقت اراده وکړه او ملکي يې له خپلې ارادې خبري کړې، هغوی په ځواب کي ورته عرض وکړ چي دغه انسان به ويني وبهوي، خشونت او فساد به وکړي. دروغ او درم به ووايي، په جهان کي به بدامني او ناقراري راولي، خو پاک خدای ﷻ په ځواب کي وويل چي زه تر تاسي بهتر پوهېږم او د خپل جهان مصالح تر تاسي ښه سنجولی سم. زه غواړم چي هغه په ځمکه کي خپل خليفه وګرځوم او خپل جهان د انسان په لاس آباد او معمور کړم تر څو چي زما د دغه جهان زيبايي او ښکلا لا پسي زياته کاندي. مزارع او مرائع



تأسیس کړي او علوم او فنونو ته ترویج ورکړي، نهرونه او کانالونه وباسي او د جهان طراوت او نشاط عام کاندي، د مځکي غرونه وسپړي او د هغو پټي خزانې بیرون راوباسي او زما د جهان د تعمیر او ودانۍ په لار کي پی په کار واچوي، د دریابونو تل ته ور ننوزي او د هغو گوهر او مرغلري د خپلې غاړي زینت کاندي، هوا او فضا تر خپل تسخیر لاندي راولي او د الهي خلافت وظیفه پای ته ورسوي، نو ځکه یې د خپل بنده په زړه کي د مینې ډېوه او د ښکلا د مینې جاذبه پیدا کړه او د علم او پوهي په گاڼه یې ښایسته او آراسته وگرځاوه، تر څو د ښکلا د مینې جاذبه به یې په حرکت راولي او د علم په برکت د کائناتو په علم او تسخیر لاس وهومي او د جهان ښکلا دوبالا کاندي، په همدې دلیل حضرت انسان د خدای ﷻ د خلافت د تاج او د هغه د نیابت د اړیکي ور وگرځېد او دا افتخار یې په برخه سو، په همدې علت ملایکو د احترام او تعظیم سر ورته ټیټ کړ او انساني کرامت ته یې تن کښېښود، نو هر هغه بنده چي په مینه او علاقه مندۍ، پوهه او علم، د خدای ﷻ د جهان د آبادۍ په لار کي قدم وهي په حقیقت کي د انساني کرامت وړ او د بشري شرافت سزاوار دی .

څوک چي د خدای ﷻ خدایي مني او په آسماني تعلیماتو باور او عقیده لري باید تر هر چا زیات کار وکړي او د کار په برکت خپل ژوند او روزگار ښه کاندي، فرصت غنیمت وگڼي او د پسرلي له بهشتي هوا څخه استفاده وکړي، پسرلی انسانانو ته د نوي ژوند زېری ورکوي او بایده دی چي ځان د منافعو له پاره کار ترې واخلي، پاک خدای ﷻ د جهان هر څه د خپل عنایت له مخې د خپلو بندگانو د استفادې له پاره پیدا کړي او باید گټه ترې واخلي، په مځکه کي د نشو او نما او د ونو او باغونو استعداد یې هم د همدې له پاره وضع کړی دی چي بندگان استفاده ترې وکړي، لکه چي فرمایي :

"وهوالـــــذی انشـــاجنات معروشـــات و غــیر معروشـــات والنخل والـــزرع مختلفـــاً اکلـــه والزیتون والرمان متشابهاً وغیر متشابه○ کلوا من ثمره اذا اثمر واتـــوا حقه یوم حصاده ○ ولا تسرفوا انه لا یحب المسرفین○"

یعني پاک خدای ﷻ هغه قادر او مقتدر ذات دی چي داسي باغونه یې په مځکه پیدا کړي دي چي ځیني په پایو او چیلو اچول کیږي او ځیني بیا په خپلو ساقو او ډډونو ولاړ وي او مېوې نیسي او پاک خدای ﷻ د خرما گانو ونې او راز راز کښتونه پیدا کړي دي چي مختلفې مېوې او متفاوت خوندونه لري، زیتون او انار یې هم پیدا کړي دي چي په رنگ کي یو بل ته ورته والی لري او خوندونه یې سره بېل بېل وي، نو کوم وخت چي مېوه راولي او مېوې او دانې یې پخې سي ترې وې خورئ او استفاده ترې وکړئ او د حاصل برداري په وخت کي د مسکینانو حقوق ترې ادا کړئ او اسراف مه کوئ چي پاک خدای اسراف خوښوونکي نه خوښوي .

دغه آیتونه رسوي چي انسانان باید کار وکړي، باغونه کښېنوي او په ډاډه زړه استفاده ترې وکړي تر څو چي د خپل خدای د خلافت وظیفه پر ځای کړي او بالاثر خپل ژوندانه ته بهبود ورکړي، مخصوصاً د پسرلي په شپو ورځو کي چي د نشاط او خوښۍ شپې ورځي دي او د کار او فعالیت له پاره زمینه برابره ده او هر څوک کولای سي چي د خپل ژندانه د بهبود په لار کي مثبت قدمونه واخلي او خپل جهان آباد کاندي .

والسلام واخر دعوانا ان الحمدلله رب العلمین



# سونا بي بي

فاضل استاد اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد بابا

د پښتنو د مېړانې او شهامت تذکرې تر اوسه په ځینو ځایو کښې کیږي، اوس لا هم په ځینو خواوو کښې د دې بیده ټبر د ټېر همت، زاړه لوړ اخلاقي معیار او ښېګڼو افسانې مشهورې دي.

په دغه لړ کښې د یوې بنګالي افسانې ترجمه وړاندې کوم او ورسره په خورا افسوس ځان دې ویلو ته مجبور بولم

"دا بیده او بېدرده قام د خپلو زړو افسانو په نشه او غرور کښې تر دې حده مست او بیده پروت دی چې نه یې د زاړه عظمت د اعادې له پاره یو رګ لاښوري او نه یې د نوي ژوند د رڼا و خواته سترګې هم ور اوړي.

د غفلت په رنځ یې د پښتني ترپندورګو سرې او تودې وینې دومره وچې سوي دي چې هیڅ سپکه او ذلت یې د غیرت چینې پر ایشناو نه سي راوستلای".

رشاد ـ بمبي ـ ۱۳۲۹ ش



هر کال د "مکهیا" د سین پر غاړه د (سونا بي بي) یاد په خورا ګرمجوشي سره نیول کیږي، په لسمه هجري پېړۍ کښې کوم وخت چې پر بنګال د پښتنو پاچهي وه (چاندراو) نومی د (کرمپور) هومره غټ زمیندار و چې د شاوخوا د پښتنو واړه ماړه سرداران یې په خیال هم نه ور تلل، د ده سپوږمۍ غوندي ښکلې لور (سونا) په برنده ځواني کښې کونډه سوې وه، د دې د ښکلا افسانې تر ډېرو لیرو لیرو ځایو پورې رسېدلې وې ځکه چې کونډه وه او په هندوانو کښې کونډه د بل مېړه له حقه څخه محرومه ده.

نو (چاندراو) ته چا په زړه کښې لا د دې د غوښت خبره نه سوای جوړولای.

عیسی خان د یوه پښتانه سردار توریالی زوی و، د مېړانې ازانګې یې تر وطنو تللي وې، دی پخپله ځواني زیات مغرور و، څه چې به یې وویل هغه هوډه به یې هرو مرو تر سره کوله، څه چې به یې کول سر به یې پر ارغوي پسې اخیستی.

د(سونا) د دلفرېبي ښکلا مسلسلو افسانو او حکایاتو د ده په ذهن کښې دا خیال ټینګ کړ:

"په هر ډول چې کیږي (سونا) به د ځان کوم".

اما (چاندراو) کله دا منلای سوای، له یوې خوا د دین بېلتون او له بلې خوا د هند تهذیب او رسم و رواج مخالفت (د کونډې لور ور کړه) ناممکنه ایسېده.

له دې خوا عیسی خان لیڅې راغښتي وې، په هر چم چې وي (سونا) به راودوي. د (سونا) مینې د ده آرام وران کړی و.

هوډیالي ځلمي د خپلو ارادو په عملي کولو کښې یو خاص مهارت درلود، یوه شپه یې ناڅاپه برید پر وکړ، پر ډېرو موانعو سربېره یې (سونا د یوي) په چپاو واخیستله، (چاندوراو) او د ده بهیر ډېري لاسوپښې سره ووهلې په مزلو پسې وځغستل اما پر عیسی توریالي یې لاس بر ن سو.

په پای کښې عیسی خان د (کالاګهاشي) په کلا کښې ساه واچوله، خپله هوډه یې تر سره کړې په کلا کښې د یوه فاتح زمري په څېر کښېنوست، خورا سخته مقابله یې وکړه، د (چاندراو) تمام واک هیڅ په ونه سو کړلای،

(سوناديوي) د دې پښتانه زمريالي سردار پر مېړانه دومره مينه سوه چې آخر يې د ده د رضا او مينې له پاره هندو دين پرې اېښی اسلام يې ومانه او د عيسی خان په نکاح سوه . له دغې ورځې څخه (سوناديوي) (سونا بي بي) وبلله سوه .

عيسی خان په بنگال کښې پخپل تسلط قايمولو پيل وکړ ، ډېر پوځونه يې غونډ کړل او هسې کارنامې يې ښکاره کړلې چې د(کوچ بهار) راجا يې د ورتگ په آوازه له ميدانه وتښتېد . وروورو يې دومره کار مضبوط سو چې مغلي شهنشاه جلال الدين محمد اکبر خپل مشهور سپهسالار (مان سنگه) د ده استقبال لره ولېږه (مان سنگه) په خپل پوځي استعداد خورا ځانتما و . عيسی خان يې د خولې گوله بللې وه د (مکهيا) د راده پر غاړه ورتی ورتی پر (همرا) يې ورته واړول (د گنگا ساگر په نامه يو تالاب هلته تر اوسه د مان سنگه ياد گار سته) عيسی خان خپل پوځونه په کلا کښې راغونډ کړي وه . تر کلا دباندې خواړ خونړې جنگ ونښت . دواړو خواوو خپل تمام واک ولگاوه . کرې روځ ويني وبهېدې . مگر ميدان هيچا ونه گاټه . ماښام سو عيسی خان د دې له پاره چې زياتې وينې تر منځ توی نه سي (مان سنگه) ته يې په سر سره د جنگ بلنه ورکړه . (مان سنگه) خپل زوم ميدان ته ورولېږه د ستر گو په رپ کښې د عيسی توريالي له لاسه وواژه سو اما وروسته ورخرگنده سوه چې دا (مان سنگه) نه و بلکې د روه يې ورسره کړې وه بله پلا يې بيا (مان سنگه) ته روستی بلنه ورکړه (مان سنگه) مجبوراً ميدان ته راغی بيا هم بری د پښتانه سو کوم وخت چې عيسی خان له آسه راوغورځېد او (مان سنگه) ته يې ځان ورړساوه د(مان سنگه) ماينه په منډه راغله په پښو کښې يې ورولوېدله په ننواتو او زارو او ژړا يې ورته وويل :

"که مان سنگه په ماتې دهلي ته ستون سي پاچا به يې ککرۍ غوڅه وربرې کړي او زه نتلې به کونډه سم" .

د عيسی خان پر زړه د دې ژړا او ننواتو دومره اثر وکړ چې له (مان سنگه) سره يې د ډهلي تگ ومانه . اکبر مغل دی د ياغي سردار په نامه بندي کړ . ليکن کله چې يې د ده د بهادرۍ او عالي همتۍ افسانې واورېدلې خورا يې وناراوه او د بنگال سپهسالار اعظم يې مقرر کړ او اجازت يې ورته ورکړ چې پر خپل نامه پاچهي جوړه کړي .

پر عيسی زمري ژر مرگ راهله کره ، تر ده وروسته د پاچهي واگې سونا بي بي په خپل لاس کښې واخيستلې (سونا بي بي) د (ستار گاول) لومړۍ ښځه وه چې پاچهي يې کړ بده .

په (سونا بي بي) کښې څومره چې د عيسی خان شهامت ، مېړانې او توريالیتوب اغېزه کړې وه هومره يې د پاچهي په انتظام کښې هم بشپړ مهارت ورسره موندلی و . دومره صلاحيت پکښې موجود سوی و چې د عيسی خان ودان کړی تنظيم يې همغسې وپاللای سواى . د پاچهي ځانگو خورا منظم او با ضابطه کار کاوه . د لښکر و تنظيم نوکې هم وران نه سو . د خدای بخښلي سردار عيسی خان رعيتو د (سونا بي بي) زيات احترام کاوه . د خپل مړه مشر د مېرمنې له پاره تر ځان قربانولو حاضر وو . (سونا بي بي) هم د عيسی خان پر پله تله . رعيتو د امن او سکون ژوند تېراوه . د ځينو شاوخوا حريفانو دا خيال و چې د عيسی خان تر خوله د ساه ختلو سره سم دستي به د (ستار گاول) د پاچهي شيرازه خوره وره سي . چنانچه د عيسی خان دښمنانو دا موقع اسره بللې وه غوښتل يې د پښتني سلطنت په ماتولو خپل زوړ غچ وکاږي .

د (چاندپور) راجا او د (تيرا) راجا په يوه پلا حمله پر راوړه . عيسی زمری مړ و اما د ده د نامه او پاچهي ساتلو له پاره يو بهادر سپاهي (سونا بي بي) ژوندی وه د متجاوزو راجاگانو د کوږمې نازولې ديوي (سونا) د دوی د يوه بدترين دښمن په حيث د دوی توري ته سينه سپر کړې او د پښتانه د نامه او عزت خوندي کولو له پاره سر ښندنې ته حاضره سوې . د (سونا کهند) په کلا ننوتله په خورا همت او مېړانه وجنگېدله . د دې د جنگو او توريالیتوب افسانې تر اوسه په هغو خواو کښې يادېږي .

(سونا بي بي) تر آخره دمه پورې د دښمن د لښکر و مخه راوگرزوله . آخر ته يې د جنگ ټول وسايل ختم او توريالي مله يې يو يو وژل سول نو يې روستی فيصله وکړه چې :

"دا د غيرت او ېجه د پښتنو د متينو هډو هديره ده او دا مضبوطه کلا چې زمريالیو پښتنو ته يې نسبت کيږي په هر صورت چې وي د دښمنانو ناپاکو لاسو ته بايد ورنه سي" .

سمدستي يې د کلا د سوځولو حکم وکړ او (نازولې سونا) په هغو سرو لمبو کښې د (سونا کهند) د باشکوهي کلا سره مکوټ سوله .

د دغې هوډيالۍ (سونا بي بي) د مېړانې ياد هر کال تر اوسه د (مکهيا) د راده پر غاړه په خورا احترام تازه کيږي . ښه يې ويلي دي :

**"مېړونه مري نوم يې پاتيږي !"**

کله چې هوتکیان د هندوکش په سهېل کښې واکمن ول، سدوزیانو د هندوکش په شمال کښې تسلط لاره . د لومړني شاهي ښار کندهار، او د وروستنیانو شاهي ښار هرات وُ . دوی پخپل منځ کښې پر فراه باندې سره بدورده ول . په هم دغه زمان کښې خلجیان په ایران کښې سخت بوخت ول څو هغه هیواد یې د ځان تابع گرځولی وي . لا ډېر وخت تېر سوی نه وُ چې کورنۍ بې اتفاقي او کورنۍ جنگ د دې باعث وگرځېدل چې نادر قلي افشار نه یوازې په ایران کښې له خلجیو څخه قدرت واخلي، بل لا په افغانستان کښې له سدوزو څخه هم . په هرات کښې د زمانشاه کورنۍ له واکمنۍ څخه بې برخې کړه سوه، او د زمان شاه کشر زوی احمد، یرغمل ونیوه سو . مشر ورور ئې ذوالفقار شاه چې د پلار پر ځای باندې د شمالي افغانستان واکمن وُ، له کورنۍ، خپلوانو او قومه سره د نیشاپور و شاوخواوو ته تبعید کړل سول . دغه مانا ښتانه له هرات او شاوخوا څخه وایستل سول .

نادر قلي د خپلو فتوحاتو په سلسله کښې هندوستان هم فتح کړ . دې له پیسو، زرین پسول، جواهرو، الماسو او نورو ارزښتناکو شیانو سره مینه لرله . ځکه ئې نو به تلاش کښې وا و غونډول ئې . له بلې خوا څخه د دې ملگرې که به هم په سپاه کښې ول یا ئې په لوړو مراتبو او مقاماتو کښې مقرر ول، هم د زرو، جواهرو، غمیانو او پیسو له پاره سرابښتوب لاره . دا هغه څه ول چې دوی په پټه ورسره وړلای سوای . ځکه نو پر دوی باندې د نادر قلي بې اعتمادي پیدا سوه . نو یو خود له همدغه اسیته څخه دوی یو له بله څخه ناراضه سول . سپاه سالاران د نادر قلي پر ځای باندې ډېر د دې د ورور ابراهیم خان خواخوږي سول . دی پخپله هم له خپله وروره څخه بېرېدی څو نه گانه ئې د خپلو خواخوږو په وسیله سره دی وژلئ نه وي . ځکه ئې نو د ده په نیولو پسې لستوڼي ورونغښتل، تر بلخ، بخارا او داغستانه پوري پسې ولاړئ او هورې ئې درې کاله و هرې خوا ته تپاک وواهه، خو په لاس نه ورغلئ . د نادر شاه افشار د دماغي وضعي په باره کښې محمود الحامي داسې کښلي دي :

"د غرنیو کړاوونو او د سیمې د ټینگو ځایونو له مخې څخه ئې هلو ځغلو نتیجه نه ورکړه . ځکه ئې نو دماغ ته ډېر خلل رسېدلئ وُ . مغشوشتیا، اند ښنې، سودا او مالیخولیا ئې ورځ په ورځ شدت او ډېرښت موند . د دې بېره و داسې اندازې ته رسېدلې وه چې پر هر چا باندې ئې اعتماد بایللی وُ . و هر ولایت ته چې به ئې حکام واستول، هغوی ئې تر شپږو میاشتو یا کال ډېر هورې نه پرېښوول . دوی به ئې بیر ته د محاسبې له پاره اردو ته وروغوښتل . دوی به ئې تر لښتو لاندې واچول، آن د غوږو او پزې په پرې کولو او د ستر گو په ایستلو سره به ئې له دوی څخه ډېره اندازه پیسې پرې کولې . د تحویلدارانو ډله، د صرافانو ډله او ډېر سپاهیان چې به ئې د مالیې یا بل څه د اخستنې له پاره وولایاتو ته واستول، و دوی ته چې به د هر چا په نامه سره حواله ورکړه سوې وه له هغو څخه به ئې چې هر څونده اخستنې کولې، حاکم به د خپل ځان له بیرې څخه سند ځنې اخستئ او هغه به ئې مهر کاوه او پیسې به ئې په کلات کښې و خزانې ته سپارلې . [خلک او] سپاهیان یو د بل له ستمه څخه تر پزې پورې رسېدلي ول څو هغه وُ چې سپاهیان له اردو څخه تښتېدل" (الجامي ۳۶ ـ ۳۷ مخ) .

دغه مانا له خلکو څخه ډېر محصول اخسته کېدئ، حکام ئې و دې ته نه پرېښوول چې یا ئې له ملته څخه پرې کړه کړې وي یا له بیت الماله څخه او سپاهیان هم له اخستو څخه منع کړل سوي ول . دوی ټول تر اشتباه لاندې ول . دې پوره حساب ځنې غوښت او د چا چې به حساب گډوډ وُ، و هغه ته ئې سخته جزاء ورکوله . دا د دې له پاره چې دوی له خلگو څخه ډېرې پیسې اخستې دي، خو و خزانې ته ئې لږ تحویل کړې دي .

د نادر قلي لېونتوب تر داسې اندازې پورې ورسېدئ چې خپل مشر زوی ئې، رضا قلي میرزا، چې د ایران سلطنت نائب و له تهران څخه وروغوښتئ او په دواړو ستر گو سره ئې ړوند کړ . دا ځکه چې دوه کاله تر مخه په ځنگله کښې چا پر دې باندې د ټوپک ټک وکړ، او دې پسله دوو کالو څخه و دې نتیجې ته ورسېدئ چې ښایي دغه کار به د دې د زوی په هڅونه سره سوئ وُ .

لومړی د ورور او بیا د زوی له پېښو څخه ئې داسې څرگندېږي چې د نادر قلي په څنگ کښې اوز داسې ماهران کسان ول چې دی ئې له خپلو خواخوږو او ژینو څخه بې برخې کاوه، او دغه کار ئې پخپله په دې سره کاوه . هېښتیا په دې کښې ده چې دی پر خپلوانو باندې، هغه چې لیرې ول بد گمانه وُ خو پر نژدو کسانو باندې که به خپلوان ول که به پردیان ول بیا داسې بدگمانه سوئ نه وُ . دغه ئې ساد گي وه . (څه سل کاله وروسته انگلیسانو دغسې پالیسي د شېر علي شاه په اړوند تطبیق کړه . دې هم خپل ورور او زوی بایلول او بل زوی ئې په بند کښې باوله

سو) . دی د لیرو په لټه کښې وُ، خو ځاني بلا ئې د دء په شاوخوا کښې ورنژدې وه) . دا د هېښتیا ځای دئ چې دء ځنګه یو له هغو ځخه لا هم نه وپېژندلای سوای .

نادر افشار د طهماسب قلیخان جلایر چې له لومړنی ورځې ځخه شریک الدوله او امین السلطنه وُاو هم پر ځپل ورارء، علي قلي خان باندې چې په سیستان کښې ئې ځپل والي مقرر کړئ وُهم بدګمانه سوئ وُاو داسې هځه ئې کوله ځو دوی ئې هم له منځه وړي وي، او هم به داسې نور ول (تاریخ احمد شاهي، ۳۸ شم مخ) .

محمودالحسین الجامي (۱۹۷۴ : ۳۷ _ ۳۸) د ناورین حال داسې ویلئ دی :

کزین ظلمهای پر از قهر و کین
نیامد چرا آســــــمان بر زمین
قــیام قــــیامت چرا دیر شد
کـه این قدر دربند تاخــیر شد
گـــروهی بدهریه تابع شـــدند
گـــــروهی بالحاد شایع شدند
گـــــروهی بآئین اهـــل فرنگ
ز تسبیــح زنــــاربستند تنگ

نـادر افشار لـه مشهده ځخه مخ د خبوشان پـر خوا باندې حرکت وکړ چیرې چې یوه لار د شمال و خوا ته ځي او بله و تهران ته د لوېدیځ و خوا ته . د دغه ځای په نیم فرسخي کښې ئې شپه تېره کړه . په سبا ئې له دغه ځایه ځخه خپله کورنۍ او خزانې د اېران په شمال کښې و کلات ته واستول چیرې چې د دء د اوسېدني مېنه وه . ځکه نو نـادر قلي پـه خپلو شاهانه کـړدیو کښې یـوازې سو . پـه مازیګر کښې جارچي د بېلابیلو لښکرونو په منځ کښې جار وواهه چې ګانډء بـه تـر هغو پوري خوځښت او حرکت نه کیږي ځو دوی ته امر سوئ نه وي . دغسې هم د بېلابیلو لښکرونو و سپاه سالارانو ته دغسې امر وسو .

پـه نیمه شپه کښې محمدقلي لـه نورو دیرلسو ملګرو سـره د نـادرقلي شـاه د کـړدیو و خـوا تـه ور روان سـول . محمدقلي افشار د شاه و کړدیو ته ورننووت . د دء کورنی ساتنوال له خوبه ویښ سو او له محمدقلي سره ئې شروشور جوړ کړ چې دی ولې او د څه له پاره په دې نیمه شپه کښې بې له اجازې ځخه و شاهي کړدیو تـه ورننوتلئ دئ . دی ئې داسې په مرګ سره تهدید کړ چې ګڼي له خپله ژوندنه ځخه بېزاره سوئ دئ دا چې داسې زوړ ر توب ئې کـړئ دئ .

په دغه ترځ کښې محمدقلي د توري واري پر وکړ او دی هم پر ځکي باندې ولوېدئ . په دغه پسې شاه نادر قلي افشار چې پـه زوړ سره ویښ سوئ وُله خپلي کړدۍ ځخه ور ووت او محمدقلي ته ئې وویل چې ته بې مروته (نمکحرامه) په دې شپه کښې دلته څه غواړې؟ محمدقلي په غبرګاوي کښې ورته وویل چې "زء د مرګ ملائکه یم. او ستا د روح کښنې له پاره راغلی یم" . دغه ئې ورته وویل او بیا ئې نو توره ورسره لښته کړه او پر کله باندې ئې وواهه . نادر قلي یوه داسې پنډه خولی پر سر کړې وه چې توره تر ونه لوېده خو په دوهم کښ سره ئې نادر قلي له پښو او تخت دواړو ځخه واچاوء .

شاهپور احمد ځان په شنه خړه کښې و افغاني لښکر ته، چې د محمد علیزي تر سپاه سالارۍ لاندې وُ، ور رسولئ وُاو هغه ئې د "تیار سی" په حالت کښې درولئ وُ ځو د وروستنیو حـالاتو ځـارونکئ وي، ګـوري بـه چـې ځـه پېښیږي . شاهپور احمد و سپاه سالار محمد ته ویلي ول ځو دی ورغلی نـه وي دی بـه هیڅ راز حرکت او عکس العمل نه ښووي . خو خپله سپاه به یې تیارسی ولاړه وي .

د شاه لښکرونه پـه خپلو کړدیو کښې آرام بیدء ول . پـه ګهیز کښې نمر وخوت، د لښکرونو سالاران ته پوهېدل چې وي به که به ځي . د دغسې مغشوش انتظار پـه حالت کښې په هغو لښکري کړدیو کښي چې د شاه د کړدیو پر شاوخوا باندې نجتي وې، نابوېره چیغاري _ بوغاري او لګه درګه پیل سوه . لښکریان لـه خپلو سالارانو سره ځـوک خبـر ځـوک نـاخبره ویوې او بلې خـوا تـه پـه ځغاسته سـول (الجامي ۱۹۷۴ : ۴۰ _ ۴۱ تم مخ) .

کله چې ځابنت مهال شاهپور احمد ولیدل چې د نادر قلي افشار په لښکرونو واویلا، الپته توب او سراسیمګي ګډه سوې ده نو ئې پر خپل آس بـانـدې پښـه واړوله او ځان ئې و افغاني سپاه ته ور ورساوء . دء په افغاني سپاه سره د نادر قلي پـر توپخـانې بانـدې بریـد وکـړ چـې ټـول توپونـه او زمبورګان چې شمېر ئې و شپږو سوو (۶۰۰) تـه رسېدئ لـه اوو سـوو (۷۰۰) اوښـانو سـره تـر لاسـه کـړل (تـاریخ احمدشاهي ۴۳ _ ۴۴ مخونه) .

تـر دغسې اخستني وروسته شاهپور احمد لـه دغې ولجې سره چې دء د نادرقلي د سپاه خورا ارزښتناکه حربه، وسله او وسیله ګڼله، د خپل وطن و خـوا تـه وخوځېدئ .
کله چې و سلطان میدان ته ورسېدئ دء هغه بندیان چې پر نادري توپخانې باندې د حملې په ترځ کښې ئې نیولي ول،

آزاد کړل او دوی ئې له زنبورک اوښانو سره رخصت کړل . مانا پلي ئې ایله نه کړل .

و خپل هیواد ته د لاري په اوږدو کښي شاهپور احمد او سپاه سالار محمد علیزي له سپاه سره و تربت حیدري ته ورسېدل . کله چي دوی ژړي مهال کړدې نجتلې، نابوبره د هرات له خوا څخه یولس ـ دوولس زریز لښکر ښکاره سو . دوی کړدې نجتل پر ښوول او د خان ساتني له پاره ئې په دفاعي تدارکاتو لاس پوري کړ خو د دغه لښکر له ناڅاپي بریده څخه ئې خان ژغورلي وي . دغه سپاه نوره وړاندي نه ورغله . او چیري چي وه هوري ځای پر ځای باندي ودر پدله . پسې ورځ شاهپور احمد او سرلښکر محمد تر څاښته پوري و خپلي سپاه ته حرکت نه ورکړ . ځنگه چي نور د پروني لښکر څرک نه وایست سو . نو دوی هم و افغاني لښکر ته حرکت ورکړ . یاد کړی لښکر د نادر قلي افشار د وراره علي قلي خان سپاهسالار و چي له هراته څخه ئې حرکت ورکړئ و . (محمودالحسیني الجامي ۴۶ ـ ۴۷ مخونه) . دی باوري دئ چي دوی غوښتل د افغانانو لار بنده کي، یا پر دوی باندي یوه پټه نابوبره حمله تر سره کي . خو کله چي ئې د افغاني اردو انتظام او تیاری ولیدئ نو ئې خپه مړه سول . په خان کښي د جنگ توان نه ولیدای سوای . ځکه ئې نو د شپې په تیاره کښي میدان پرې ایښئ و .

زه په دغه باره کښي د الجامي سره همغاړی نه یم . که به د علي قلي افشار قشون د افغاني اردو په نیامت وروتلی و، نو به مو گمان کاوه چي د بایللي توپخانې د بیرته اخستني له پاره به ئې دغه کار کړئ و . که به د علي قلي قشون دغه نیامت لاره، بیرته تش لاس بېله جنگه څخه نه گرځېدی . ښېښه داسي تصور کوو چي د نادر قلي افشار و وراره ته د خواخوږو له خوا څخه خبر رسېدلئ و چي نادر قلي وواژه سو . ده هم په تلواري سره هر ځونده ځواک چي لاره و هغه ته ئې مخ د خبوشان پر خوا باندي حرکت ورکړئ و . دوی هم نابوبره د لاري په اوږدو کښي له افغاني سپاه سره مخامخ سوي ول چي د جنگ نیت او تیاري ئې نه لرله او جنگ به ورته بې گټي څه بل به ئې په تاوان هم وای . دا ځکه چي زور به ئې ختلئ وای . ولي د ده مراد به هرو مرو د ایران د تاج و تخت نیوءنه وه . نو که له افغاني سپاه سره جنگېدای باید هغه امید ئې له سره څخه ایستلئ وای . له افغانانو څخه د توپخاني اخستنه به نه اسانه کار و او بل به ځني خبر لا هم نه و . دا ځکه چي دغه وروستني ناوخته پېښه وه . و ده ته به د وختي گهیزني پېښي خبر رسېدلئ و . خو ده و خپل هدف ته ځان رسولئ وي د شپې په تیاره کښي ئې لار اړولې او له افغاني قوې څخه گوښي تېر سوي او مخ د خبوشان پر خوا باندي تللي ول . ځنگه چي افغاني سرغنه و هم خان ته هدف لاره، ځکه ئې نو د دوی څرک ایستلئ نه و چي له کومي خوا څخه ورغلي او و کومي خوا ته تللي ول . د یوه لوی اردو څخه دغه څرک ایستنه یا پل وهنه څه گران کار هم نه و .

دا چي افغاني سپاه ئې د شپې له خوا څخه ځنگه په تلني سره خبره سوې نه ده نو یا دوی څارو گران نه لرل یا هغوی اوږد واټن ځني لیري ول .

که به د علي قلي مراد د افغاني سپاه مخنیوی او توپونو اخستنه وای د هرات په نژدو کښي به ئې و دوی ته خان خزه کړئ وای، او د افغاني سپاه څرک ایستني له پاره به ئې یوې او بلې خوا ته څارو گران استولي وای .

افغاني اردو له تربت حیدري څخه جنابدتون پر خوا باندي تگ کړی و، او له هغه ځایه څخه ئې خان و فراه ته رسولئ و . که دوی پوهېدلي وای چي علي قلي او افشاري قوې ئې هرات تخلیه کړئ دئ نو ئې هغه ښار په آساني سره آزادولای سوای چي وروسته د قزلباشو له سخت مقاومته سره مخامخ کیري .

علي قلي خان د فراه په کلا کښي هم یو کوچیني قشون اچولئ و . دغه قشون له افغاني سپاه سره د مقاومت په نیامت له کلا څخه وروتلئ و . شپاهپور احمد له افغاني سپاه څخه څه دري سوه جنگیالیان ور واستول چي له قزلباشو سره مخامخ سي . هغوی د یو شمېر کسانو تلفات ور کړل او هم بندیان ونیول سول، نور ئې وتښتېدل . شاهپور احمد بندیان هم وبخښل او آزاد ئې کړل (الجامي ۱۹۷۴ : ۴۸ ـ ۴۹ مخونه) .

نادر قلي افشار د کندهار اداره د نورمحمد خان علیزي (غبار دغه نوم سهواً "غلزائي" لوستلئ او داسي کښلئ دئ، ۱۹۶۷) او د عبدالغني خان علیکوزي بیگلربیگي په لاس ورکړې وه . عبدالغني خان د کندهار والي او نورمحمد خان سپاه سالار او میر افغان و (تاریخ احمدشاهي، ۳۵، ۴۹ مخونه) . نادر افشار داسي پوهېدلئ و چي علیزي او علیکوزي (علیزائي و علیکوزائي) د حضرت علي ؓ له نسبه څخه دي، او له همدې اسیته څخه ئې دوی او د دوی قبایل پر کندهار ولایت باندي مسلط کړي ول . کله چي شاهپور احمد و کندهار ته راورسېدئ خان ئې له

روغي جوړي، پخولايني، سوغاتونو او مرکوله لاري څخه او هم ئې د تهديد او زور له لاري څخه په اومه ځواني کښې چي لا ځليرويشت (۲۴) کلن سوئ هم نه وُ، د شاه حسين هوتک څخه پاته، اورنگ ته ورساوء . د شاهي په لومړني کال کښې ئې خپل موقف په کندهار کښې ټينگ کړ چي بې له وينو توېولو څخه ئې شايېدنه نه وه . د شاهي په دوهم کال کښې و کابل او پېښاور ته متوجه سو چيري چي لا د نادر قلي افشار حکمرانان پر ځاى ناست او په قدرت کښې ول . د شاهي په دريېم کال کښې تر سيند راده‌ء و هند ته ورپوريووت (محمودالحسينی الجامی ۵۱ _ ۷۵ مخونه) .

د خراسان ترکان له اوزبکانو او افغانانو څخه په بېره کښې ول . دغه پېښه د الجامي په عباراتو کښې په لاندي توگه سره منعکسه سوي ده : "شاهرخ، د عراق د اميرانو په غوښتني سره سرداران، حاکمان او مأمورين د هغو ولاياتو عراق او آذبايجان له پاره وټاکل او هم ئې د هغويو په غوښتني سره د هغو هيوادونو د سفر ټکل وکړ . جعفر خان وکيل الدوله او د کوردانو خانان، قليج خان جلاير، بهبودخان جايوشلي او د خراسان نور ترکان اميران چي د شاهرخ د سلطنت پر تخت کښېنسني او د دء د مختاريت او د مهمو چارو د مدار په توگه باعث ول، په دغه سفر کښې مصلحت نه ليدئ، او د خراسان د چارو سمبالوءنه ئې تر مسافرت مهمتره او اوليت لرونکې بلله . ځکه ئې نو د عراق د سفر د فسخ کولو غوښتنه کوله . دوى په ښکاره دلايلو او څرگندو اسنادو سره ثابتوله او ويل ئې چي د خراسان کوردان او ترکان د دوو خروښناکو سېلابو لکه (د شمال) د اوزکانو او د کندهار د افغانانو توکمونو تر منځ واقع دي . نو له دغو دوو قومونو سره چي سخت لاري دي همېشه مو سره دښمني او جنگ وي چي د انسان د بې اعتمادۍ او بې باورۍ عامل گرځيږي . نو په داسي حال کښې چي موږ په ليري او اوږده سفر سره ولاړ سو دغه دوه دښمن توکمونه به موقع پيدا کي او پر دغه هيواد باندي به په چټکتيا سره بريد وکي چي د خراسانيانو اورشوي، غيلي او بوده به بوزي او کورونه به ئې ور ويران کي، وطن به ئې ونيسي، ښځې او کوچنيان به ئې بنديان و کندهار او ترکستان ته ورسره بوزي . په عراق کښي خو اوس دښمني نسته"، (محمودالحسيني الجامي ۱۶۶ _ ۱۶۷) .

د کندهار تر افغانانو او اوزبکانو لا و دوى ته يوه بله نژدې بلا هم په څزه کښي پټه وه چي محمود الجامي ئې داسي څرگندونه کړې ده : "هغه سپاه سالاران چي د نادر قلي افشار د کورنۍ ضد ول پخپل منځ کښي و يوء مصلحت ته ورسېدل . دوى په اتفاق سره شاهرخ له شاهي څخه وايستئ او د خراسان ولايت او سلطنت ئې پخپلو منځو کښي سره ووېشئ داسي چي هر امير به پخپله سيمه کښي خپلي چاري سمبالوي، دوى به د طمع لاس و نورو اړونده سيمو ته نه ورغزوي . که دښمنان لکه اوزبک او افغان يا د عراق او فارس او آذربايجان له خوا څخه څوک د خراسان د نيوني اراده وکي ټول اميران به ملگري کيږي او د هغه دفع به کوي"، (محمودالحسيني الجامي، تاريخ احمدشاهي، ۱۹۷۴ : ۱۸۳ يم مخ) .

مير علم خان خريمه د عربي او کوردي لښکر سپاه سالار وُ . داسي ايسي چي دوى سنيانو د اېران شمال د ترکانو او صفويانو له لاسه څخه کيښ . ځکه ئې نو شاهرخ ايستلئ او خراسان ئې تر خپل منځ وېشلي وُ . وروسته دوى ماته خوړلې او له خراسانه څخه شړل سوي ول . نو واک بيرته و شعيه صفويانو او ترکانو ته په لاس ورغلي وُ .

کله چي ستر احمدشاه د خيتځو ولاياتو له چارو څخه فارغ سو نو ئې د هرات او خراسان و خواته مخ واړاوء . دغه د ده د پادشاهي څلرم کال (۱۱۶۴ هـ) وُ . په اېران کښي چي پايتخت ئې په مشهد خراسان کښي وُ د نادرقلي سپاه سالارانو لا د شاهي اورنگ پر لاښ باندي سره جنگېدل . دوى شاهرخ ميرزا چي د نادر افشار او صفوي شاه حسين نمسى او د اېران د تاج و تخت حقاني وارث وُ په غبرگو سترگو ړوند کړئ وُ . دښمنانو ئې دى تش د نامه له پاره پر اورنگ باندي کښېنولئ ساتئ . ستر احمدشاه په يوء دغسي حالت کښي پر هرات او خراسان باندي ور روان وُ چي محمودالجامي (۲۲۵ تم مخ) ئې داسي ښووي :

هوا خوش و سبزه دلربا
بگلگشت گشته اشارت نما
صبا چون چمنست کشان در شباب
که بسم الله ای شاه گردون رکاب
بعزم خراسان بيار ا سپاه
که فتح و ظفر چشم دارد براه

قبيلوي او سيمه ئيز لښکرونه له کلو او ښارونو څخه پر ټاکلي وخت باندي و کندهار ته رسېدلي ول . د دوى د توشي او درستې ټول مصارف د دولت له خوا څخه ورکول کېدل . دوى ټول سپاره ول . د هر سپاره او آس خرځ ئې له لومړنۍ ورځي څخه ټاکل سوئ وُ . الجامي دغه ټول

**معلومات په نظم کښي جار ایستلي دي چي په لاندیني توګه سره بیانیږي :**

که جنـــــید شـاه کواکب زجای
بهـار است و نوروز عشرت فـزای
بطبـل و عـلم آمد از مـاه و مهر
به مـــیدان کین شهسوار سپهر
زبـــرق درخشـان و بارنده مـیغ
فضـــای فلک شد پر از تیر و تیغ
فـرو ریخت تیر تـگرگ آسمان
زقـوس قـزح کـرده بر زه کمان
فرو کوفت رعد از افق کوس جنگ
به جـنبش در آمـد سپـهر دورنگ
برآنــم کــه من هم درین نوبهار
روان شــوم ســوی ایران دیار
نخــستین زاعدا بــگیرم هـرات
زنم کوس اقـــبال برشش جهات
که آن ملک مـیراث آبائی ماست
تصـرف درو غـیر را کی رواست
ازان پس سـوئی ارض اقدس روم
مشــرف به فیض زیـــارت شوم
نشـانم زنو شـــاهرخ را بتخت
شــود تا دل دشمنان لخت لخت
کـــنم پر سریرش دیگر مستقل
که گـــردند بدخـــواه او منفعل
زاعـــدای آن شــــه بر آرم دمار
نشـــانم فـــرو فـتنهٔ روزگار
عــطایش کنم جـمله ایران زمین
بفرقــش نهم تاج و بخشم نـگین

**د لښکري چارو ليکونکو د ټولو سپاهانه غونډونو د اسانو او باري بوده وٌ مصرفي مبلغ شمېرلي او مقرر کړئ دئ (الجامی ۱۹۷۴ : ۲۸۲ یم مخ) :**

وزان پس چنین گفت فرمان صدور
که لشـــکر کند ساز آن راه دور
بنوعی که تا هشت مـــاه دزست
نباید کسی را زکس توشه جست

**احمدشاه خپل شاهي اردو او هم ئې هغه سپاهوي چي له ولایاتو څخه و کندهار ته راغلي وې وکتلې . دوی په بېلابېلو وسلو سره سمبال سوي ول . څکه ئې نو دوی پر څان ته غونډونو باندي څله وويشل او تنظيم ئې کړل . دوی او نور ئې بیا په نورو جنګي وسایلو سره سمبال کړل (الجامي ۱۹۷۴ : ۲۲۹ _ ۲۳۰) :**

سپـــاهی چو جـمع آمد از هر دیار
بفرمود خـــاقان جـــــم اقتدار
که نام آوران ســـان شـکر دمند
ز خود و زره زیب و زیـور کـــنند
کـــشیدند صف ســـروران سپاه
زگــــرد سپه آســـمان شد سیاه
ســـــنانها بدوش یلان پر شکوه
چو بـــرق درخـــشان زبالای کوه
عـــــلم هــــا چو خوبان بالا بلند
رســــاندند بر اوج گردون کمند
قــبا آهـــــنان با کمرهای زر
شـــــد آراســـــته کوه ها از کمر
پلنـــــگان کوه نهنــــگان آب
نشســـته بر اسپان صرصر شتاب
چه گـــویم زاســــپان آگنده ران
که فربه شد از وصف شان داستان
اگـــــر بـــگذرد آفتاب از شتاب
نیـــفتد بران پـــرتـــو آفـتاب
برفـــتن سبک رو چـــو باد بـهار
بلی چـــنین نیـفتند ازو دربحار
سبک بـــار زیر ســـلاح گـــران
چـــو آتش که باشـد در آهن نهان
پی عـــرض لـــشکر سپه سروران
نمودند پابـــوس کـــشورستان
گـــشادند زبان را بـصد احترام
کـــه ای آفـــتابت فلک احتشام
توئی آن ســـرفراز فرخنده بخت
که چون آفـــتاب بود تاج و تخت
زتو هـــمتی جـــانفشانی زمـــا
کـــرم از تو کـشور ستانی زما
نمودند لشـــکر نویسان عـــمل
بفرمـــــان خـــاقان دین و دول
حـــواله نـــمودند زر بی شمار
بهر کـــــس زافـــواج نصرت شعار
زانـــعام و اکـــرام وجود شهی
خـــزاین شد از در و کــــهر تهی
باحسـان در گـــنج زانسان کشاد

که شد نام حاتم فـلک را زیاد
کسی را که شه جقه بر سرنهد
بپاداش آن در رهـش سرنـهد

ستر احمد شاه خپل وراره لقمان خان چي د ذوالفقار شاه زوی وُاو د خان خانان په لقب سره ئې ویـاړلی وُ د نائب السلطنته په شان سره پـه کندهار کښي خپل ځـای ناستی وټاکـه . ده پخپلـه لـه لويي جـوړي کـړي سپاه سـره چـي جنګاليان ئې ټول سپاره ول، مخ د هـرات پـر خـوا بانـدي حرکت وکړ څو د پلار موروثی ښار او د شمال پايتخت ئې بير ته د ځان کړئ وي . دغه زمان په هرات کښي امير خان عرب ميش مست د شاهرخ شاه حکمران وُ .

الجامي داسي پوهيدلئ وُ چي ميش مست د کندهار له خوا څخه اړخ په هوا وُاو شواهد ئې سته ول چي تر مخه ئې لا يادوءنه سوې ده . څکـه ئې نـو خپـل جاسوسـان و دغـي خواتـه ګمـارلي ول چـي د نخښو ځـارنـه وکـي . ده داسـي کښلي دي : "امير خان ميش مست د هرات د دار السلطنت سر دار وُ چي د شاهرخ شاه لـه خـوا څخـه پـر دغـه ولايـت بانـدي درول سـوئ وُ، د دار القـرار کنـدهار و خـوا تـه ئـې جاسوسان ګمارلي ول او همېشه ئې د وخت د کيهان د اردو لېږني پوښتنه کوله او خبر ئې اخستئ، شپه په شپه او ګړی په ګـړی ئې د هغـې خـوا بـاد بوېـاوه". (تـاريخ احمدشـاهي ۱۹۷۴ : ۲۳۱ شم مخ) .

دغه مأموريت په خـود و ده تـه شـاهرخ شاه او د هغـه د حاميانو جعفر خان وکيل الدوله، قليچ خان جلاير، او بهبود خان جايوشلي له خوا څخه ور کړه سوئ وُ .

د قزلباشو يو لښکر چي د فراه د ساتني له پاره په دغـه ښار کښي ځاي پر ځاي سوئ وُاو حاضر وُ د افغاني اردو پـه ورنږدې کېدني سره ئې فراه پرېښولـه او ځـان ئـې و شين ډنډ ته ورساوه او له هغه ځايه څخه و هرات ته پر شا سو . امير خان عرب ميش مست بـه ددغـه ايـران ګمـارلي سوي لښکر څخه د افغاني سپاه د رسېدني خبر ترلاسه کړئ وُ . تـر دغـه وروسـته ده شـاهرخ شـاه تـه او هـم و نـورو ايرانـي اميرانو ته پر له پسې ليکونـه استولي ول او د لويي مرستيالي قوې غوښتنه ئې ځني کړې وه .

لـه بلـي خـوا څخـه امير خـان د هـرات د کـلا پـه استحکاماتو سره لاس پوري کړئ وُ چي الجامي ئې داسي يادوءنـه کـړې ده : "د توپخـاني درسته او اور غور څـوونکي وسايل چي قيامت ئې ښاوه لکـه توپ، قنباره، ضرب زن، زنبـورک، جزايـر، او اور اچـوونکي بـاوليچ ئـې د ښـار پـر شـاوخوا بانـدي ځـاى پـر ځـاى کـړي ول . لـه خـوراکي او چيښنو توکو څخه او د نورو اړتيـاوو د پوراينى مالونـه او د پـر خواړه ئې له هره جنسه څخه و کلا ته دننه ور وړي ول . نور نو د شاهرخ د مرستي په انتظار کلابند کښېنوست . . . د قوت د زياتوالي او د خپلواکی له پاره ئې پر تـه لـه هغـو پنځـو شپږو زرو جنګيانو څخه چي لـه مشهد څخـه ئې د وېش د ساتني له پاره لـه ځـانـه سره بېولي ول يـو بـل ټـل ئې چي لـه ترکـانو، تاز يکـانو، عربـان، عجميانو او لـه بېلابېلـو طوايفـو او اصـنافو څخـه ول چـي لـه مـلازم مليتونـو څخـه ئـې نيـولي ول . ټولـوونکي ئـې و کلـو او مېنـو تـه چـي د هـرات پـه دارالسلطنه پوري ئې اړه لرله، خلک ئې د هرات په شاوخوا کښي له خپلو کورونو، مځکو او باغونو څخه کوچولي او پـه ښار کښي ئې د دننه ځايان کړي ول . د ښار د کلا هـر بـرج ئې د هغې مېني و سپين ږيرو او مشرانو ته ورسپارلئ وُ په هر برجه کښي د پرش ـ څلوېښت کسه توپکوالان ناست ول چي له هغې مېني څخـه ئې ساتنوالان ټاکلي ول، د ښار د دُورونو و شا ته ئې خاوري کوټه کړي وې او د دُورونو پـر سر باندي ئې لوی توپونـه ايښي ول، د دُورونو د ساتني له پاره ئې څلور ـ پنځه سوه کسان ګمارلي ول". (تاريخ احمدشاهي ۱۹۷۴ : ۲۳۲ ـ ۲۳۳ مخونه) .

کله چي افغاني اردو و هرات ته نږدې کېدونې وُ، امير خـان مـيش مسـت يـو قشـون د حسـن علـي خـان افشـار بيګلر بېګي تر قوماندې لاندي و مخامختيا تـه ور واستاوه . د ښار په يو فرسخي واټن کښي لـه پـل مـالان سره دغـه دوه لښکرونـه سره مخامخ سول . پـه پايلامـه کښي قزلباشيه لښکر له ماتي سره مخامخ سو او مخ د ښار پر خوا بانـدي ځني وتښتېدئ (همغه ۱۹۷۴ : ۲۳۴ شم مخ) .

افغاني اردو ښار کلابند کړ . ستر احمد شاه نه غوښتل چي ښار ئې د توپونو تر ګوليو لاندي نيولئ او تسليمي تـه ئې اړ ايستلي وي . ولي چي د ښار ځـايي او سېدونکي بـه وژل سوي واي او هم به ښار ويران سوئ واي . څکـه نـو بايـد بلـه لار موندلې سوې واي . دغه لار هم ګرانه وه، او هم ئې ډېر وخـت اخسـتئ . بـل خطـر ئـې دا وُ چـي پـه دغـه تـرڅ کښي به مرستياله قوه له خراسانه څخه و عرب شاه ميش مسـت تـه رسـېدلې واى . څنګـه چـي څـوان احمدشـاه د هغـه پـروا نـه لرلـه او نـه ئې غوښتـل چـي ښـار د توپـو تـر ګوليـو لانـدي نيـول سـوئ وي، بـل لا د دغـه پـر ځـاى بانـدي ئـې غوښتـل چـي د کـلا د دېـوال يـوه برخـه ئـې نړولې وي .

و امیر خان عرب میش مست ته د خپلو لیکنو جوابونه له یوسف علي خان او قلج خان جلایر څخه چې د سلطنت چارې ئې په لاس کښې وې پر له پسې رسېدل . و دې ته زړه وري همتانه وعدې ور کولې کېدلې چې غونډوونکې استازې ئې د هیواد و شاوخوا کلو او ښارو ته استولي دي چې ژر تر ژره به د کوردانو لښکر، د ترکانو قشون، د عربانو فوج، د گورجیانو لښکر او هم نور حاضر سوي وي او د دې و مرستې ته به ورولېږل سي . د دغو قشونو د رسېدني له پاره د امیر خان میش مست د صبر او حوصلې پیاله پسله ډېره انتظاره څخه وچړپېدله . دا څکه چې دی د افغاني توپونو په مخامختیا کښې واقع ؤاو هره شېبه ئې د دې ډېره وه چې د ژوندانه داستان به ئې پای ته رسېدلئ وي . څکه ئې نو یو له کنایاتو، استعاراتو او لغازونو څخه ډک لیک و شاهرخ شاه او د هغه و یارانو یوسف علي خان او قلیج خان جلایر ته وروستاوه چې مضمون ئې محمودالجامي داسي ښوولئ دئ :

"من تا حال بهر قسم که دانستم و توانستم به امید امداد آنطرف خود داری و در حر است قلعه استواری کردم . چون کار به حد اضطرار انجامیده و سامان قلعه داری بآخر رسیده زیاده برین پای استقرار فشردن و با چنین شاه فلک دیهم که شاه باز بلند پرواز همتش در صید هفت اقلیم است، مجادله کردن نمیتوانم . امرای عالیشان را اگر محافظت سرحد خراسان و حفظ سیرت و مال وناموس و جان و پاس سلطنت پادشاه ایران منظور است زود بر سند یا کمک بفرستند که هنوز قلعه از دست نرفته وآتش بیداد در نگرفته است . باید که بعلاج واقعه پیش از وقوع پردازند و این شعله جهان سوز را بآب تدبیر که امروز میتوانند خاموش و منطفی سازند والا بعد از آن که این قلعه از دست رود معالجه مشکل شود و این تزلزل بارض اقدس بلکه بتمامی ولایت ایران سرایت کند .

اگر مایه حرکت در ارکان دولت مفقود و مرد در خراسان ناپیدا و عدیم الوجود باشد دو سه هزار زن را لباس مردانه پوشانیده و صراحی گردنان سیمین ساق نازک بدن را بصورت مردان تهمتن بساق روئین تن جلوه نمای عرصه نمود گردانیده پنجه صولت مردان را چون دست آنها نگارین و میدان کار زار را بخون غیرت رنگین سازند و اینقدر از برای اشتهار خبر کمک درمیان اغیار لازم دانسته به ترسیل لشکر مخترع نپردازند (بپردازند) همینکه اعلام آن فوج از دور نمایان شود من دروازه قلعه را گشوده با جمعیتی که دارم بیرون می آیم و بمدد این خیل پری انگشتر اقبال از دست سلیمان روزگار میربایم". (الجامي، ص ۲۳۹ _ ۲۴۰) .

"ما تر دې گړیه پورې په هره توگه چې پوهېدم او کولای مې سوای، د هغې خوا د مرستې په هیله مې د کلا په ساتنه او ټینگونه کښې کوښښ او هلې ځغلې وکړلې . څنگه چې حال د خطر او اضطرار و حد ته رسېدلئ دئ او د کلا ساتنې سامان و پای ته رسېدلئ دئ نو تر دې زیات ځان ټینگونه او له داسې شاه سره چې شاهي سوجاپ ئې آسمان ور کړئ دئ او د لوړ همت شاهباز ئې په اوو اقلیمونو کښې د لوړې الوتنې ښکار کوي، نور مقاومت کولای نه سم . و عالي قدره امیرانو ته که د خراسان د وپش ساتنه، او د سیرت، مال او ناموس د ځان او د ایران د پادشاه احترام منلئ وي نو باید ژر تر ژره راورسیږي یا مرسته راواستوي چې لا کلا تر اوسه پورې له لاسه څخه وتلې نه ده او د ظلم اور لا تر اوسه پورې بل سوئ نه دئ . نو باید د پېښې علاج تر پېښې دمخه وکړه سي، او دغه جهان سوزونکې لمبه چې نن کولای سي د تدبیر په اوبو سره مړه کي . نو ولې چې وروسته، کله چې به کلا له لاسه وتلې وي، د پېښې علاج به گران وي . دغه زلزله به نه یوازې و مقدسي مځکې ته رسېدلې وي بل به لا و ټول ایران ته خپره سوې وي .

که به د دولت له ارکانو څخه د حرکت سېک ختلئ وي او په خراسان کښې به نارینه هیڅ سته والئ نه لري نو و دوو _ درو زرو ښځو ته د نارینه وُلباس ور واغوندئ د دوی نرۍ غاړې او نازک سپین پڅ کیان د غټ بدنو او پندې ئې د اوسپنیز بدنو په توگه ور جوړې کئ او د نارینه وُغورسې خپرې د ښځو غوندې په نوکرخو سره ور رنگ کئ څود جنگ میدان ئې د غیرت په وینو رنگ کړئ وي . د ځرگندونې له پاره دوغندي وکئ چې د دغه مخترع لښکر خبر په دښمنانو کښې د کومک رسېدني په توگه خپور کئ . نو په دغه ترځ کښې چې د دغه لښکر جنډئ له لیرې څخه ښکاره سي زه د کلا دوورونه پرانیزم او له هغه لښکر سره چې زه ئې لرم دبانډې پر ورزم او د دغو شاه پیریانو په چوټ سره د بخت گوتمې د زماني د سلېمان له لاسه څخه کاږم". (تاریخ احمدشاهي، ص ۲۳۹ _ ۲۴۰) .

د دغه لیک په رسېدني سره د شاهرخ د دربار امراوُ په عملي چارو لاس پورې کړ . هغه لښکرونه چې له شاوخوا څخه ور رسېدلې ول هغه ئې تنظیم کړل . د ځینو دغو لښکرونو نومونه داسې ثبت سوي دي : "د ترکيې ایالاتو

قشون، د اتک و بیات قشون، د مروي قشون، د جلایر قشون، د حوله قشون، مشهدي قشون، قلیجي قشون، یموت قشون، تکه و کوکلان قشون او د سالور قشون . دغه ټول سره غونډل کړل سوي ول . دوی په ډېر سامانه سره یو ګڼ شمېر لښکر چي پلي او سپارهٔ پکښي ول او شمېر ئې تر شپېتو ـ اویاو زرو اووښتئ د شاهرخ په مشر تابه سره له مشهده څخه حرکت وکړ . . . دوی عزم لارهٔ چي له امیر خان سره ئې مرسته کړې وي . نو د تربت حیدري له لاري څخه د هرات د دارالسلطنت پر خوا باندي روان سول "، (محمودالحسیني الجامي ۱۹۷۴ : ۲۴۳ تم مخ) .

دغه زمان چمشګزک د خراسان لویه قبیله وه (همهغه ۲۴۱ تم مخ) .

کله چي شاهرخ شاه و تربت ته رسیږي خبر ورکول کیږي چي له یوې خوا څخه اوزبکي قواو له خوارزم څخه د یوسف علي خان، چي د شاهرخ شاه سپاه سالار و، پر مېنې باندي غوټه وهلې ده، او له بلې خوا څخه ترکمنانو د کلات پر توابعو باندي حمله کړې ده، او د اتک کلاوي ئې محاصره کړي دي . یوسف علي خان و خپل وطن ته ځني و ګرځېدئ . شاهرخ شاه چي له قزلباشیه قوې سره و رود کلا ته ورسېدئ، خبر کړه سو چي دښمن ئې میر علم خان له پنځو ـ شپږو زرو توپک والو عربانو سره د قاین په نژدو کښي په خزه کښي ورته ناست دئ . د شاهرخ شاه د قشون قومندانانو دا غوره وبلل چي اوز ورځي په داغه ځای کښي پاته سي او په ترخ کښي ئې باید میر علم خان خریمه یا د روغي له لاري څخه له ځانه سره ملګری کړه سي یا ئې د جنګ له لاري څخه ونیسو او د دهٔ قشون له خپله قشونه سره یو ځای کو او د قاین له لاري څخه به هرات ته ولاړ سو". (همغه ۱۹۷۴ : ۲۴۴ ـ ۲۴۵ مخونه) .

میر علم خان هغه کس وُ چي شاهرخ شاه ئې تر مخه لا له اورنګه څخه پسي اخستئ او په غبر ګو ستر ګو ئې ړوند کړئ وُ . د مصلحو کسانو په منځګړ توب سره د دغه دوه دښمنان د افغانانو د خطر په مخامختیا کښي و تفاهم او روغي ته سره ورسېدل داسي هر څه چي تر مخه پېښه سوې ده هغه د قضا و قدر پېښه وه . ای د فلکي مقدراتو جریان دغسي وُ چي چا ئې مخه نیولای نه سوای . هر څه چي وه او ده، هغه پېښه سوې ده او داسي کیږي . خو تر دې وروسته باید په منځ کښي روغه او دوستي وساتله سي .

وروسته تر هغه چي زاړهٔ دښمنان پر قرآن مجید باندي تر سو ګند لوړلو وروسته سره دوستان سوي ول، میر علم خان

خپله خور و شاه رخ شاه ته ور په نکاح کړه . ځکه نو د عربانو او کوردانو لښکر ونه هم د شاهرخ شاه له قشون سره ملګري سول او مخ د هرات پر خوا باندي ئې حرکت وکړ . دوی د لاري په اوږدو کښي و رود کلا ته ورسېدل او هورې ئې اسماعیل خان پخپله کلا کښي کلابند کړ (تاریخ احمدشاهي ۱۹۷۴ : ۲۴۵ ـ ۲۵۰ مخونه) .

اسماعیل خان و ځوان احمد خان ته لیک واستاوهٔ چي ایراني قشون دی کلابند کړئ دئ، شاهرخ شاه ئې په ستر ګو ړوند کړئ دئ او مخ د هرات پر خوا باندي در تلونئ دئ . احمد شاه چي له دغي پېښي څخه آګاه سو و خپل لښکر ته ئې امر وکړ چي کار تر سره کي (همغه ۱۹۷۴ : ۲۵۱ ـ ۲۵۲ مخونه) .

افغانانو هم د کلا دوه برجونه چي تر لاندي ئې سوړان کښل سوي او له باروتو څخه ډک کړي سوي ول، په هوا کړل او له دغه سره د کلا د ډوال هم ونړېدئ . خو و کلا ته د افغانانو د ننوتني مخنیوی سوئ نه وي پر دغي برخي باندي ئې د توپ ګولیو باران جوړ کړ (همغه ۱۹۷۴ : ۲۵۴ سم مخ) . په لږ وخت کښي د ښار ساتنوالي قواوي تسلیم سوې . امیر خان د ښار له لویانو او مشرانو سره د بخښني له پاره له ښاره څخه ورووتل . د پېښي پایلامه محمودالحسین الجامي پخپل نظم کښي داسي جار ایستلې ده (۱۹۷۴ : ۲۵۶) :

شتابان به درګاه شاه آمدند
امان جوی و زنهار خواه آمدند
کشادند لب بتقصیر خویش
که لطف عامت زاندازه بیش
بدیها زنابخردی کرده ایم
تو نیکی کن ارما به یی کرده ایم
ببدخو بجز نیک خوئی مکن
بجای بدی جز نیکوئی مکن
مده تا توانی نکوئی ز دست
که آید از دست هر کس که هست

ځوان طبیعته احمدشاه نه یوازي و امیر خان عرب میش مست ته بخښنه وکړه، بل لا د دهٔ ټول لښکر ئې پر تر مخني حالت باندي پر ښناوه . احمدشاه و خپلو سپاهیانو ته امر کړئ وُ چي د ټولو خلکو مال او ناموس خوندي دئ که دوست وي که دښمن وي باید مصئون او محترم وساتل سي . امیر خان د ښار کیلي و احمدشاه ته ور وسپارله او د دهٔ اردو هم په منظمه او با انظباطه تو ګه سره و ښار ته

ننووت . خلګ و مخې ته وروتلي او وهغه ته ې په خوښې سره هر کلي وواېه . د ښار ناآرام او اضطراري حالت په ژروالي سره د آرامۍ عادي حالت غوره کړ (همغه ۱۹۷۴ : ۲۵۷ سم مخ) .

په دغه وخت کښې د بلخ او ميمنې مشران او اميران هم و هرات ته ورسېدل . دوی و بختور ځوان احمدشاه ته خپلي مبارکۍ وويلې او د دهٔ تابعيت ئې ومانه . د دوی د عرايضو په لړ کښې يو هم د بخارا د امير رحيم خان اتاليق څخه غاو او شکايت وُ . دهٔ له پوريخوا څخه پر افغاني سيمي او خلکو باندې بريدونه کول او له خلکو څخه ئې په زور سره ججه او ماليه ټولوله . څکه نو د بلخ او ميمنې د خلکو په غوښتني سره يوه کوچينوټې افغاني قوه د مخلص پوپلزي تر مشر تابه لاندې او بل ئې هغه قزلباشيه قشون چې له مشهد څخه له امير خان عرب ميش مست سره راغلئ وُ وسره ملګري کړل څو د شمالي سيمو خلک ئې د پوريخوا (پاردريا) د متجاوزينو له چور او چپاول څخه ژغورلي او ساتلي وي . د بلخ د لويانو له ډلي څخه ئې يو د والي په شان او بل ئې د سپاه سالار په شان مقرر کړل .

دا چې د شمال سپين ږيري او مخور کسان و ځوان احمدشاه ته د مبارکۍ ويلو له پاره ورغلي ول، او هم ئې سمدلاسه د دهٔ تابعيت قبول کړ ، دلالت پر دې باندې کوي چې دوی او سيمي ئې تر مخه هم د زمان شاه تر واک لاندې وې او خلګو ښه خاطرات څني لرل . ولي چې و ناپېژندلي شاهپور او بيا پادشاه ته نه پرهٔ ديان د مبارکۍ له پاره ورځي او نه ئې پخپلي خوښې سره تابعيت مني .

و امير خان عرب ميش مست ته ئې له شاه ولي خان باميزي سره د شين ډنډ د فتح مأموريت ورکړ . دوی د دغه کار تر عهدې په بريالیتوب سره ووتل . بيا شاه ولي خان باميزي او دغه امير خان عرب ميش مست د نيشاپور کلا په خمپاره ئې توپونو سره ونړوله ، او دوی په مېړانې سره د نيشاپور ښار ونيوئ . وانزله پوپلزي ته ئې مأموريت ورکړ چې د رود کلا محاصره ماته کي او اسماعيل خان له کلابندۍ څخه آزاد کي . دهٔ هم دغه دروند کار تر سره کړ . دمخه تر دې چې احمدشاه د مشهد او نيشاپور و خوا ته خوځېدلئ وي دهٔ درويش علي خان هزاره د هرات والي مقرر کړئ وُ . احمدشاه د خلکو پر وفاداری، همت، اهليت او کفايت باندې عقيده لرله، نه د دوی پر اصل و نسب باندې . دا څکه چې و خپل هم قوم، همخېل، او همزي ته امتيازات ورکول، د تاريخ په اوږدو کښې سلطنتونه د خواري او تباهي و خواته بيولي دي . خو سرچپه ئې هم پېښه سوې ده . ستر احمدشاه هم په دولتي مقاماتو کښې او هم په سپاهانه صفوفو او مراتبو کښې و ټولو طوايفو او قبايلو ته ځای ورکړئ وُ چې محمودالحسيني الجامي ئې په لاندې ډول سره يادونه کړې ده :

هـزبران پرکـين دران داوری
نمودنـد آهـنگ جـنگ آوری
هوا قـير گـون شد زگرد سپاه
شـده تيره رو ديـدهٔ مهر و ما
زغـريدن سپاه کوس و شوريلان
بلرزه در آمـد زمـين و زمان
زبس برق مـيزد سـنان سپاه
نظر خـيره مي شد دران رزمگاه
ز آهـن قـبايان خنـجر گذار
ستـاده به هـر سو هزاران هزار
تفنـگچی چه گويم بطرفی که بود
زجـان مـخالف برآرنده دود
درخشـيد تيـغ خارا شگاف
ربوده سـپاهی شب از مـصاف
زنيزه گـذاران دران دشت جنگ
نشـان داده از نيستان و پلنگ
ذهل ميـخروشيد برسان شير
يلان را به پيـکار کرده دلير
کـماندار و جوشن دران صد هزار
پي حـرب گـرديده بس بقرار
ز آواز طـبل و صـدای يلان
برقص آمـده اسب در زير ران
گـروهی ز درانيان از هـرات
هـمه رزم جوی و شجاعت صفات
گـروهی زافغان بافروجاه
همه نامـداران زرين کـلاه
هـمه بود از مـلک احمدشهی
که سـازند ميدان زدشمن تهی
زمهمند و وردگ بـسـی نامدار
که بودند هر يک چـو اسفنديار
گـروهی قـزلباش و اوزبک بهم
زده از شـجاعت چو شمشير دم
گـروهی زبلخ و سمرقند و دشت
که پيکان شان او حجر ميگذشت

پس سیـــــستانی و هم زابلی
زافغان غـــــلجائی و کابلی
گروهی زتاجیک و تاتار و روم
گروهی دلاور زهر مــرز و بوم

لا کلـه چـي نـادر قلـي افشـار هـرات فـتح کـړئ وُ، د ابداليانو خېل او قبيله ئي له هرات او د ښار لـه شـاوخوا څخـه د نيشاپور و شاوخوا ته کوچولي ول . او شاهي کورنۍ ئې د يرغمل پـه توګـه سـاتلې وه څـو د هغـي اووه زريـزي ابـدالي قوې، چې په هـرات کښـي ئې لـه خپلـه قشون سره ملګـرې کـړې وه، وفـاداري ئـې تضمين کـړې وي . وروسـته ئـې پـه مشهد کښي د دغي شاهي کورنۍ ساتنه کوله .

وروسته کله چې احمدشاه خراسان فتح کړ يا لا هالـه چـي نـادر قلـي افشـار واژه سـوئ وُ ښـايي چـي د ابـداليانو کورنـۍ و خيـل و زيـي بـه بيرتـه و هـرات او کنـدهار تـه کوچېدلي ول . خو هغه ابدالي قبايل چې نارينه ئې نادر قلي افشار پـه خپـل قشون کښي د ځـان ملګـري کـړي ول هغوی د هوتکي حکومت تر نړېدني لنډ وروسته هغـه تش کلـي او کورونـه ډک کـړي ول چـي لـه هغـو ځخـه نـادرقلي افشار خلجي کورنۍ او خپلونه و تهران، خار او ورامين تـه فـرار کـړي او کوچـولي ول . د دوی د بيرتـه ګرځېـدني امکان نه ليدل کيري دا ځکه چې د دوی د اوسېدني سيمه ئې هم په کندهار او هم په ترنک ناوه کښي لـه لاسـه څخـه وتلې وه او دوی ئې د بير ته اخستني قدرت نه لاره . دا ځکه چې واکمنتوب ئې له لاسه څخه وتلئ وُ .

د دوی پر مځکو باندي شاه عباس په ارغند ناوه کښي آذر يها ځايان کړي ول چي له کرجستاني ګرګين سره کلـه چي شاه عباس صفوي کندهار اشغال کړ، راغلي ول . خو وروسته د شاوخوا خلجيانو او ابداليانو پښتنو دوی لـه ارغند ناوې څخه د غور و غرونو ته خېژولي ول . ولي وروسته چې نادر قلي ترنک ناوه هم له خلجيانو څخـه تخليـه کـړې وه نو دءِ آذر يها د دوی پر ځای باندي په ترنک ناوه کښـي ځايان کـړي ول . دغـه اوسـني خلجـي قبايـل او نـور چـي اوس پـه ترنک ناوه کښي اوسېدنه لري، دوی کله چې شاه شجاع وواژء سو او انګليسان له افغانستان څخه وايستل سول، د ترنـک نـاوې لـه شـاوخوا څخـه چـي ښـايي د دوی بـه هـم يـو شمېر کسان د مرکزي افغانستان و غرونـو تـه ځنـي ختلـي ول، بيرتـه و تـرنګ نـاوې تـه ورکـډه سـوي ول . دوی د هوتکيـانو د پادشـاهي د وختـو نيمـي لا هـم نـه دي . يـو بـل شمېر چـي د نـادرقلي قشـون دوی نيـولي نـه ول خـو کلـي او کورونه ئي پايللي ول دوی مجبور سوي ول چي د پوونـده وُ په څېر ژوند وکي . دغه خپلونه اوس هم و هغه د بې وطنـۍ و ژوندانـه تـه دوام ورکـوي او د پوونـده کوچيـانو پـه توګـه ژوند کوي . له دغو څخه يوه لويه قبيله چي په دغه چپاول کښي له لوېديځه څخه و منځنيو سيمو ته تللي ده احمدزي دي . دوی پـه ختيـځ کښي د نورو غونـدي پاشلي سوي نـه دي . نور ډېـری قبايـل ئـې پـه ختيـځـه پښتونخـوا کښـي لـه ځايي پښتنو سره ګډ سوي دي .

د هـرات د ابـداليانو پـر ځـای بانـدي نـادر قلي افشار د شاهيون او بختيار دري ـ څلور زره کورنۍ له آذربايجان او عراق څخه په هرات او د هغه په شاوخوا کښي ځايانی کړي وي . (په دغه بـاره کښي او د کندهار او هرات د پښتنو پـه لېـږدولو کښـي دي د محمودالحسـيني الجـامي د تـاريخ احمدشاهي ۴۸،۳۵ او ۱۶۲ تـم مخونـه وکـتل سـي . دی د شاهنشاه احمدشاه ابدالي د دربار منشي وُ) .

يو شمېر افغاني لغاتونه چي نن په اېراني فارسي کښـي دخيل ښکار يږي لکه هندوانه (تربز)، تور (جـال)، دوشيزه (لو ښځه، هغه نجلی چي نوې و بلوغ ته رسېدلې وي)، خونـه (خانه، اطاق) او ځيني نور داسي ښايي د هغو خلجيو ميراث وي چې و تهران او شاوخوا تـه ئـې کوچـول سوي ول او هـم د هغـو ابـداليو چـي لـه هـرات څخـه د نيشـاپور و شـاوخوا تـه لېږدول سوي ول .

**پايلامه**

پوښتنه داسي ده : آيا ځوان احمدشاه ابدال په هغـه ټـل کښي چې له نادر قلي افشار څخه ئې خپل نژدې تېروني خپلوان ليري کړي ول شامل وُ که نه؟ دی بـه پـه دغـه کـار کښي سيده ساده شامل نه وُ . ځکه چي د دوی تـر منځ ئـې اړيکي نه لرل، که ئې څه ويلي وای، سم د لاسـه تـر اشتباه لاندي کېدای سوای . نو که به شامل هم وُ، دوهـم ـ درېيم لاس به وُ .

بله پوښتنه داسي ده : آيا ځوان احمدشاه د نادر افشار د وژني په دسيسه کښي لاس لاره، که ئې هسـي پـه شـاوخوا کښي وُ؟ شواهد او قـراين پـر دې بانـدي دلالت کـوي چـي ځوان احمدشاه د وژني مرکې طراح غـړی وُ . دا ځکـه چـي ده غرورې لرل :

۱ . د دءِ د کورنۍ پادشاهي ور ړنګه کړه سوې وه .
۲ . د دءِ شـاهي کورنـۍ لومړنـۍ يرغمـل سـوې او بيـا تبعيد سوې وه .
۳ . د دءِ هيواد اشغال کړء سوئ وُ .

۴ . د دې وطنوال لـه خپلـو ښارو، کلـو او کـورو څخـه و نورو ليرو سيمو ته فرار کړل سوي ول .

۵ . د کنـدهار ښار چې پـه سيمه کښې بـه د وخت و زمـان يـوازېني ښار وَاوز پـوړيـزه ښـکي او دنگـي ماڼۍ ئې لرلې کندواله او له خاورو سره برابـر کـړه سوئ و .

۶ . د دې د هيواد ډېر خلـک يـا وژل سوي يا پـه غبر گو ستر گو ړانده کړل سوي ول، او خود به ئې تر شا لا نور غروړن عوامل هم لرل .

ده پر اينـه بانـدي تريخي لارې، نو خـود ئې د دغو ټولو ناخوالوانتقام ځني واخيست . د دې پـه هغـه تانـده ځـواني کښي دی احساساتي، جذباتي او هيجاني نه سو چې خنجر ئې کښلی او پـه يـوه مساعده موقـع کښي ئې د نـادرقلي پـه لړمانـه کښي ور ښخ کـړئ واى . دې پـه ملـي سويـه سـره شاهانه انتقام ځني و کيښ، داسي چې هم ئې سر و هـم ئې سر د تاج خاوند سو .

۱ . ځـوان احمدشـاه ابـدال لـه دې څخـه خبـر وُ چي د نادر قلي افشار د وژني په دسيسه کښي څو کسان شـامل ول؟ دې دغـه شـمېر (۱۴) کسـان ښـوولئ دئ . څوک به وايي چې پـه وروسته کښي بـه لـه دغه شمېر څخه خبر سوئ وُ . پـه وروستـه کښي ئې امکان نه وُ . ځکه چي د خلکو له خبرېدو سره سم هله _ گوله او هلي _ ځغلي پيل سوي وې . دې هم سم د لاسه و افغاني سپاه ته ځان رسولی وُ .

۲ . احمدشـاه ابـدال لومـړی پـلا پـه شـنه خـره کښي و افغاني سپاه تـه ورغلئ وُ، او دوی ئې د تيارسي پـه حالت کښي درولي ول . داسي چي ځاى پر ځـاى بـه وي، هـيڅ حر کـت بـه نـه کـوي تـر څـو دی ور رسېدلئ نه وي . مانا د دې و امر ته به گوري . کـه بـه څوک وايي چي نو دی ولي پـه هغـه نيمـه شپـه کښي و افغاني اردو تـه نـه ورتلئ؟ يو دا چي هغـه مهال په نيمه شپه کښي ئې هيڅ اړتيا نه وه . بل دا چي پـه شپـه کښي بنـديز وي . و هيڅ اردو تـه د شپي لـه خوا څخـه څوک ورتلای نه سي . پهره داران ئې دريـش کـوي او کـه دريـش نـه سي نـو واري هم پر کوي .

۳ . دريم دا چي افغاني اردو د نورو لښکرونو پـه پـاى کښـي وُ . دا ځکـه چـي افغـاني اردو جنـداول وُ . څنگـه چي د لاري پـه اوږدو کښي د پـرې دي اردو پر توښه او يوښه باندي او هم هغه ټپيان او رنځور لښکر يـان چـي تـر شـا وي د هـري سـيمي د جنگياليـانو لـه خـوا څخـه سـپاره يرغلونـه دباندي کيږي څو له ولجه گر څخه ئې ولجې وړې وي . نو افغاني جنداول سپاه وظيفه لرلـه چي د دغسي يرغلونو مخنيوي ئې کړئ وي . نو څنگه چي د احمدشاه او د دې د انـډيوالانو کـرديې بـه د نادرقلي افشار و کـرديو تـه نـژدې نجتي وې، لـه افغـاني سپاه سره بـه ئې اوږد واټن لارې . نـو دی بايـد پـه هغـه تـوره دربـه کښـي تـر نـورو ډېـرو لښکرونـو تېـر سـوی وای چـي کېـدونکی کـار به نه وُ .

۴ . بالآخره احمدشاه ابدال د نادرقلي افشار د پـاى و پايلامې ته جوړ کړئ پلان لارې چي نورو بـه يـا نـه لارې يا ئې لـه تطبيقـه څخـه عـاجزان سوي ول چي دغـه هـم د دوی تيـاري نـه لـرل ښـووي . پـه دوی کښي يوې يا ځينو يو پلان لارې او هغه به د نادر قلي افشـار د ورور خواخـوږي او هوامنـان ول . ځکـه چي دوی په هغه ورځ وختي يا ناوختـه د نادرقلي و ورارې ته ليک يـا شفاهي پيغـام لېږلئ وُ چي و هغـه تـه وواييي چي نور نو مـه راگوره ! پـه دغـه اړونـد ترمخـه هـم ږغېـدلی يـم او لـه هراتـه څخـه د هغـه حرکت له سپاه سره مخ د مشهد پر خوا بانـدي ئې بې شپيانه ثبوت دی . دوی داسي تلوسه لرله چي پـه هغه شپه کښي ئې لار پـرې کـړې وه . لـه بيانـه څخـه دا نـه ښکاريږي چي هغوی لـه هراتـه څخـه څونـده واټـن لار وهلې وه . خـو دوی پـه څر گنـده سره د هرات پـه نژدو کښي نـه ول . بل لا ډيـره لار ئـې پـرې کـړې وه . لـه پاتـه تـاريخ څخـه داسـي استنباط کېدای سي چـي د علي قلي دواړي خطا سوي وي . هم ئې هـرات لـه لاسـه وتلئ وُ او هـم د ترې تاج و تخت ئې خپـل نـه کـړای سـول . ښـايي سـر بـه ئـې هـم پـر بـايللئ وُ . تـاريخ دی نـور نـه يادوی .

يادونه :

(دغـه مقالـه لومـړی پـه ۱۹۹۷ کښي پـه فارسي ژبي سره کښلې سوې وه او په آينهٔ افغانستان کښي چاپ سوې ده . پـه اوس کښي مي د گندهار مجلې لـه پاره پښتو گـړه په څه نور زياتوب سره) .

عبدالمجید بابی

# د استاد پسرلي شعرونه

## او په هغو کښي پښتو نیگه لغتونه

عام ذهنیت تیت دی چي مني د سامري سخوندر
لاس چي د فرغون رېږي ته اچوي موسی منم
یو کــــه راته ښه وایي سل به مي مـرتد گڼي
هر ســــــړی پر بېله لاره ځي زه به د چا مـنم

د آریایي ژبو په ډله کښي د ایراني او هندي ځانگي تر منځ یوه پخوانی، لرغونې او ځپلواکه ژبه ده چي د دې مېړني ولس د لرغونو نیکه گانو د لېږد بدني ځخه چي تر میلاد (۲۵۰۰) کاله دمخه یې د ختیځ او لوېدیځ پر لور تر سره کړې همدلته پاته ده .

آریایي ټبرونه چي د آمو رود له هغه خوا ځخه د اوسني افغانستان شمالي سمتونو ته راغلي وه او ځپله همدا درنه مېنه یې آریانا وېجه بلله ، دغه ویی تر اوسه په پښتو ژبه کښي پښتنو ساتلي او خوندي کړې دی .

د اویجي سربېره نور دا ډول ویي او کلمې د کړ کېښ په اوږدو کښي گراني پښتو پخپله مېړنی لمنه کښي د پښتو ویونکو په پاملرنه ساتلي او خوندي کړي دي ، چي بیلگي یې زښتـه زیاتي دي او زمـا لـه انـده بـه د همـدې لیکنـي د غوښتني ځخـه دبانـدي وي . ځکـه پـه دې لیکنـه کښي د هیواد د منلي شاعر ښاغلي پسرلي په شعرونو کښي د پښتو د ځینو نیگه وییو خوند یتوب ته ځای ور کړه سوی دی .

پښتو د پښتو په ډول پښتنو تر همدې گړیه راورسول ، او اوس یې د یوې ترټلي او کوټلي ژبي پـه توگـه د ځپلـو ویونکو ځخه غوښتنه ده چي د نړیوالو د استازو د یوازیني لوی کانون د هغه حکم په وړاندي چي دا ژبه یې د مرگ تر پولي رسولې د مړیني ځخه وژغورې .

پښتو خوار کی خو د دوی غاړو ته لاسونه اچولي او د دوی ځخه د مرستي په هیله ده ، د ښکه مرغه اوس پښتانه او د پښتو مینان ویښ سوي او د خپلي ژبي د پیاوړتیا لـه پاره د نورو ژبو او کلتورونو د غښتلو یرغلیزو ځواکونو په وړاندي د دربېدني له پاره یې دلته او هلته سرونه راهسک کړي ، کوم چي پښتو او پښتنو ته یې د ورکاوي په ویلاړ ملاوي تړلي دي .

د پښتو ، افغانانو ، سیمي او ټول ختیځ منلي او پیاوړي پوه لوی استاد اروښاد علامه حبیبي وایي چي : "ادیبان ادب جوړوي او ادب ولسونه ویښوي" .

دا چي پښتانه نور هم ځیر سي او بیا پـه بشپړ ځراکت سره پښتو وپالي او د هغې د لوړتیا او اعتلا لـه پاره علماً او د وخت د اړتیاوو او غوښتنو سره سم لاس پکار سي ، نو د ادیبـانو ځیر تیـا او ځیر کتیـا اړینـه ده . همـدا ادیبـان او لیکوالان دي او همدا شاعران او پاړکیوال دي چي پـه ژبـه کښي زیرمي رامنځتـه کوي او دا زیرمي د نوي نسل او پـه هغه کښي د زړکیو ځلمیو او ځوانانو د ژبنی پیاوړتیا لـه پاره د تللو یوه روښانه لاره پرانیزي .

پـه هیواد کښي د دغو زیرمو پـه پیاوړتیا او پخپلـه ژبـه کښي د دې ژبي و پیاوړو زېرمو تـه د بیا ژوند موندلو او بیا رامنځته کېدو پـه لاره کښي د نورو لاس پـه کار سوو سلگونو پښتنو ادیبانو ، لیکوالانو او شاعرانو تر ځنگ یو هم ښاغلی پیاوړی شاعر دروند پسرلی دی چي پخپله شعري ټولگه د "نی کوځه" کښي یې د ډېر هغه پښتو ویي چي اوس یې د ښاریځ چاپېریال ځخه کډه کړې او په غرونو او رغونو کښي

مهجور سوي دي ژوندي ساتلي او بيا يې د هغو پښتنو د ستر گو په وړاندې ځلولي دي چې د هغوی او يا د هغوی د لوړو او زامنو د ککر يو او ذهنونو څخه پر وتو وه .

بېه به وي چې د خپلې ليکنې آريزه برخه د ښاغلي پسرلي د يوې غزلې په دغه وروستي برخه را پيل کړم . هغوی وايي :

فريد به يې څوک واوري او فريد به يې لا څه وي؟
پسرليه پښتانه چې په کنجــــــکو پلوري ژبې !

(وگورئ د نی کوڅه پنځم مخ)

چې دلته کنجک د (کاف) او (جيم) په زور سره د وېښته او هډوکي په مانا دی . (وگورئ پښتو قاموس د ۱۱۸ مخ دوهم اړخ . دوهم ويی) .

همدارنگه دا ويی د پښتو پښتو تشريحي قاموس د ځلرم ټوک د ۳۶۵۷ م مخ وروستي ويی دی چې په ول ول وېښته سره مانا سوی دی .

که د ښاغلي پسرلي موخه په دې دواړو کښې هر يو وي نو دواړه ناڅيزه . سپک او بې ارزښته څېزونه دي او څر گندوي چې د پښتنو چيغې به څوک واوري او له آره به يې چغې لا څه وي . چې دوی خپلې ژبې او د خپلو ژبو پت، عزت او د هغوی دروندوالي او لرغونی برم په ور ښتو او يا هډوکو باندې پلوري .

دلته د لمنيزې وينا په اړه څر گندوني پر ېږدم او يوازې او يوازې زموږ موخه د پتمن ورور ښاغلي پسرلي له لوري تر وسه وسه د ځينو زړو او د کاروني څخه د لوېدلو ويېو ده چې هغوی د پښتو په وړان . ويجاړ او تش تور بازار کښې بيا د پښتنو په وړاندې په مينه مينه ايښي دي . چې دلته يې يوه بېلگه همدا (کنجک) دی چې په اړه يې يادونه وسوه .

دروند سوواند پسرلي په خپلو پاړ کو کښې نوري داسي بيلگې لري نه لري ، تر هغه ځايه چې د دې ليکنې او ليکنې توان و ، تاسو ته به د هغو په اړه څر گندونه وسي . او بيا به يې د ماناو او کارونو په اړه هم خبره وسي .

دروند سوواند پسرلي بل ځای وايي :

نور پته زما اخله له موجونو له نــــــېزونو
ورپېښ په گردابونو کړم دريا د تورو سترگو

(وگورئ د نی کوڅه يوولسم مخ)

د ښاغلي پسرلي موخه دا ده چې ما نور په سېلابونو او څپو کې ولټوئ زه لاهو سوی يم او د لاهو کېدو دې چاپېريال او گردابونو ته د تورو ستر گو درياب ورپېښ کړی او ور ټپل وهلی يم دلته نيزونه د پښتو قاموس په سېلاوونو سره مانا کړی دی . (وگورئ د همدغه قاموس دوهم ټوک ، ۲۸۳ يم مخ دوهم اړخ دير لسم لغت) .

دغه ويی اوس د اوسنی پښتو د خوږې او درنې غېږې څخه ايستل سوی ويی او د زياترو اوسنيو پښتنو د ژبې د واکمنو پولو څخه شړل سوی ويی دی چې د ښاغلي پسرلي د ژبپالنې د ويښو ولولو په پلټنه سره بيا موندل سوی او د پښتو غېږې ته لوېدلی دی .

که د ښاغلي پسرلي غوندي د پښتو ژبې اديبان . ليکوالان او شاعران په پښتو ادب کښې د پښتو دغسې هېر ويي او هېرې کلمې بيا ځای نکړي نو پښتانه به د مړه ادب په برستنه کښې د پر ژر پر ېوزي . چې دا چاره د پوهانو او پر ژبه د مينو اديبانو او ليکوالانو له پاره هم مړينه ده او د پښتون ولس له پاره هم ادبي او ژبنی مر گ دی .

د دغه مر گ څخه ژغورنه د پښتو ژبې د اوسنيو اديبانو پر غاړه ده لکه چې ښاغلي پسرلي پخپلو پاړ کو کښې د پښتو هېرې برخې ته بيا د زړونو کورونه جوړ کړي دي . نور اديبان به هم ښايي د پردو وييو تر کاروني خپل دغه ډول سکلي غرني ويي و کاروي او په دې توگه به سپېڅلي پښتني روڼ ادب له تيارو او د پردو د وييو او کلمو د سيوري څخه رابهر کړي او د پښتني ولولو د لرونکو اديبانو په پښتني چوپړ سره به پښتني ارمانونه تر سره سي .

د دغو پښتني ارمانونو د بشپړ تيا او غښتلتيا په لاره کښې ښاغلی پسرلی وايي :

خدای دې پسرليه د پښتو غاړه پرې هسکه کړي
دغه مرغلري مې زړلې د ســـــــپېي غوندي

وگورئ د نی کوڅه ۲۱ مخ د غزلې وروستي برخه

سپې پښتو قاموس د صدف په مانا را اخيستې او پښتو پښتو تشريحي قاموس هم همدارنگه مانا کړې (وگورئ د لومړي قاموس د لومړي ټوک ۶۶۴ مخ دوهم اړخ نهم ويی او د دوهم قاموس د دريم ټوک ۲۷۹۸ يم مخ شپږم ويی) .

دوهم ياد سوی قاموس د همدغه ويي د مانا سره يو ځای د سوواند پسرلي غوندي د صديق شاعر د شعر په يوه برخه کښې د سپې د کاروني بېلگه هم په دې ډول وړاندي کړېده :

د سپېی سينه زېتيا ځني خالي شي
چې بازار ته جوړه لار د ر شـــهوار کا

ښاغلي پسرلي د خپل شعر په پورته ياده سوې برخه کښې پر ځان برغ کوي چې لوی څښتن دې د پښتو غاړه او

شمله هسکه کړي چې ما ورته مرغلري د صدف په ډول روزلي دي . د دوی مرغلري په خپل خپل ځای کښې د ارزښت او ستاینې وړ دي . که دغه مرغلري د هغو او دغو پښتنو له لوري ونه کارول سي . نو دا مرغلري به هم د هیري تورې لرې په مخه کړي او بیا به یې ژړنګې ځلمیان او ځوانان په مانا او په لیکنه کښې په کارونه هم ونه پوهېږي .

د ښاغلي پسرلي د نی کوځه د دغه ډول مرغلرو کمی نه لري او د پاړکو په هره پاڼه کښې یې د هغې پانې د ښکلا او د پښتو د مورنی ژبې د حق ادایني له پاره یې د پخوانیو وییو کارونه په ډېره ښه توګه تر سره کړې ده . ښاغلي پسرلي د یادو سوو مرغلرو یوه بله ښکلې مرغلره د نی کوځې په ۱۹ مخ کښې داسې کارولې ده :

حسن به ساه وبولو جــــــــند یې مینه

ښایست وي پټ خو کړي ځرګند یې مینه

که د ښاغلي پسرلي د دغه بیت د لومړۍ برخې د جَند کلمه د جیم په پېښ قبوله کړو نو دلته جُند د بنسټ . تاداو . اساس او اصل په توګه بویه ومنو . (وګورئ پښتو قاموس لومړی ټوک ۳۱۹ مخ لومړی اړخ وروسته ویی) او که همدا ویی د جیم په زور سره ومنو د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک د ۱۳۱۶ م مخ د اووم ویی په ګڼه کښې د ځان او زړه په مانا راغلی دی .

په پورته شعر کښې شاعر ښایست ساه ګڼلي او اصل یې مینه ورته بللې . هغوی وایي ښایست خو پټ دی خو همدا مینه ده چې هغه راځر ګندوي .

زموږ غوښتنه دا ده چې د ګراني پښتو کډوال ویی چې د خپلو پښتنو له لاسه د هغوی د سپکې کتنې بې غورۍ او بې پروایي له امله د خپلي ژبې د تودې او درنې غیږې څخه په کډه اړ سوي بیا و پښتو ته د سره د ژورې کتنې په دې پېر کښې راغونډ او بیا د پښتو و لمنې ته ورولوېږي او په دې توګه د پښتنو و ژبو او قلمونو ته لاره ومومي .

خبره د درانه ښوواند ښاغلي پسرلي په پاړکو کښې و دې چارو ته د لارې پرانستو ویاړ دی . هغوی وایي :

راوړه پسرلیه ! له دردونو بــوتــېدلــــــي شعر

ستا په سویو ساندو د هر چا ګومان د ځریکو وو

(وګورئ د دې ټولګې ۲۲ مخ وروستۍ برخه)

بوټېـدل پښتـو قـاموس پـه څور بـدلو او پښتـو پښتـو تشریحي قاموس په خواشیني کېدو سره مانا کړی . (وګورئ د لومړي قاموس لومړی ټوک (۱۱۹) مخ لومړی اړخ دوهم ویی او د دوهم یاد سوي قاموس د لومړي ټوک ۴۵۰ م مخ) .

د دې دواړو قاموسونو ماناوي نژدې او یو ډول دي په دې بیت کښې ښاغلی پسرلی ځانته وایي چې له خوږ او درده څخه زېرنده دغه څور بدلی شعر راوړه او یا یې وړاندې کړه ولي چې ستا په سوو ساندو او د غم په ژړاوو هر چا ګومان او اړنګ د ځریکو کړی دی . په پورته بیت کښې سرېېره پر بوټېدلي ځریکه هم دروند پښتو ویی دی چې په خوږ او یا هغه ږغ سره مانا سوی دی چې پر پاسته څېز باندي د کلک څېز د لوېدلو څخه منځ ته راځي .

ښاغلی پسرلی د خپلې همدې شعري ټولګې په ۳۸ مخ کښې وایي :

خپل وه که پردي وه چا هم چُوسه باندي نه وکړه

چا د پښتنو ویني کړې توی . چا د پښتو ویني

دلته چوسه د (چ) په پېښ او د (س) په زور سره پښتو قاموس او پښتو پښتو تشریحي قاموس په لټې او سستې سره مانا کړی دی . (وګورئ پښتو قاموس لومړی ټوک د ۳۶۱ مخ دوهم اړخ ۱۱ م او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک د ۱۵۰۰ م مخ څلورم ویی) .

پتمن استاد پسرلي د پښتو او پښتنو په وړاندې د خپلو او پردیو څخه سر ټکوي او وایي د دواړو په وینو توئېدو کښې یوه هم لټې او سستي نه ده کړې او نه یې ځانونه درېغ کړي دي . شاعر د همدې یادي سوي ټولګې د ۵۷ م مخ د راغلي پاړکي په ککرۍ باندې د نیګه پښتو د یوه بل ویی په روڼا خلول سوي بګړی ایښې او دې پاړکي ته یې د پښتو بېساري ښایست وربخښلی دی . هغوی وایي :

تلمه تلمه تلمه . د تیارو په ډنډ کښي ولوېدم

ولوېدم له پښو پخپل ایستلي منډ کښي ولوېدم

دلته کارول سوي پښتو بګړی د (منډ) کلمه ده چې د پښتو قاموس د دوهم ټوک د ۲۵۲ مخ په دوهم اړخ کښې څورلسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک د ۱۹۳۵ م مخ دریم ویی دی او د پښو په پله او هم په بنسټ او تاداو سره مانا سوی دی . چې درانه پسرلي هم د تللو وروستۍ پایله د تیارو ډنډ ته لوېده ګڼلي او بیا وایي دا ځکه چې هم د پښو ولوېدم او هم پخپل ایستلی تاداو کښې راپرېوتم .

ما د ښاغلي پسرلي د نی کوځه همدې ځېږنغوندې ته د همدې لیکنې د برابرېدو او لیکلو له پاره د لومړۍ کرښې تر وروستي ټکي پوري ولوستل په هغه کښې مي پښتو نیګه

مرغلري په نښه کړې، د هغوی په دغه شعري ټولګه کښې به داسي پاڼه او داسي پاړکی نه وي چې یو یا څو د کارون لوېدلي او هېر سوي پښتو نیګه ویې دي نه وي پکښې کار سوي . هغوی په پوره ته څو کرښو کښي د هغو څو یادو سوو وییو سربېره چي ما د بېلګي په توګه یاد کړل دا ډول درنې بېلګي نوري هم ډېري لري لکه :

په څلورم مخ کښې (بویه) چې پښتو قاموس د لومړي ټوک د ۱۲۸ م مخ یوولسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د لومړي ټوک د ۴۸۸ یم مخ دریم ویی دی چي (باید او یا په کار ده او وړ ده) سره مانا سوی دی .

بل (درویه، درویل یا دروهل) د نی کوچې په نهم مخ کښې کار سوی لغت دی چي پښتو قاموس د لومړي ټوک د ۴۷۹ یم مخ د دوهم اړخ دوولسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک د ۱۹۳۵ م مخ دریم ویی دی او په تېر ایستلو او یا دوکه ورکولو سره مانا سوی دی .

(کری) چي د شعري ټولګي په یوولسم مخ کښې راغلی او پښتو قاموس د دوهم ټوک د ۹۷۲ یم مخ د لومړي اړخ پنځلسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د څلرم ټوک د ۳۵۵۲ م مخ دریم ویی دی او په دواړو کښي په ټوله او یا ګرده سره مان سوی دی .

(راشه) په دوولسم مخ کښي ځای سوی او د پښتو قاموس د ۵۲۵ م مخ د لومړي اړخ پنځم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د ربیم ټوک د ۲۱۵۶ م مخ شپږم ویی دی او د غنمو د پاک سوي خرمن په مانا کار سوی دی .

(رمیدلي) دا ویی په دوولسم مخ کښي کار سوی دی او د پښتو قاموس د لومړي ټوک د ۵۳۷ م مخ د دوهم اړخ دوولسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دریم ټوک د ۲۲۳۲ م مخ لسم ویی دی چي خړخایونو ته د خارویو په لېږدونه او یا ډارېدنه سره مانا سوی دی .

(خړه) د ټولګي په پنځلسم مخ کښي کارول سوی ویی دی او د پښتو قاموس د لومړي ټوک د ۳۹۵ یم مخ د لومړي اړخ شپاړسم او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک د ۱۶۱۲ م مخ دوهم ویی دی او مانا یې په (یوازي، ګوښي اوبې بار وبُنې سپور) سره سوېده، لکه عبدالقادر خان خټک چي وایي :

ته به څرنګ په دا هومره شتاب درومې
چي دا لاره د خــــرو د یــکه تازده

همدارنګه پر پوره وییو سربېره (څمب) د ټولګي په اوولسم مخ کښي کار سوی ویی دی، چي پښتو قاموس د لومړي ټوک په ۳۷۸ یم مخ او د پښتو پښتو تشریحي قاموس دوهم ټوک په ۱۵۵۳ م مخ کښي د ستر ګو په یوه رپ او یا د باڼه په رپېدو سره مانا سوی دی .

(غنګی) د کتاب په ۷۵ یم مخ کښي کارول سوی ویی دی چي بیا هم د پښتو قاموس د لومړي ټوک په ۶۰ م مخ او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د څلرم ټوک په ۳۲۲۳ م مخ کښي په ازانګه او دوېچه سره مانا سوی دی .

(خلی) د ټولګي د ۷۹ یم مخ روښانه پښتو مرغلره ده چي پښتو قاموس د لومړي ټوک د ۴۳۹ م مخ د دوهم اړخ په لسمه شمېره او پښتو پښتو تشریحي قاموس په ۱۸۱۷ م مخ کښي په خاشې یا ډېر کوچني لرګي سره مانا سوی دی، خو د پوره ته قاموسونو پر ماناوو سربېره دغه پښتو ویی د کندهار د پښتنو پښتو خوندي کړی او د کندهاري پښتنو په کورونو کښي یې د وېښته په مانا کاروي او زیاتره سپین سري ښځي زیاتره مهال په خبرو کښي وایي چي تورخلی مي سپین یا تور وېښته مي سپین سو .

(خونی) دا ویی د کتاب په ۹۹ یم مخ کښي راغلی او پښتو قاموس د لومړي ټوک په ۴۶۱ م مخ او پښتو پښتو تشریحي قاموس د دوهم ټوک په ۱۸۷۱ یم مخ کښي د خوښیو پر مهال د ناوي او زوم پر سرونو د څه پېرزوینو پاشلو او همدارنګه یې په خاروني او صدقې سره مانا کړی دی او د (لیښلي) ویی چي د نی کوچې په ۱۱۶ م مخ کښي کارول سوی او پښتو قاموس دوهم ټوک په ۲۲۶ م مخ کښي په (کوچېدلي) سره مانا کړی دی درونـد ښوانـد ښاغلي پسرلي د پوره ته یادو سوو مرغلرو سربېره په لسګونو لسګونو نوري نیګه مرغلري هم د خپلي همدغه ټولګي په بېلابېلو پاړکو کښي پېیلي او ځای کړي دي او هغوی په دې ډول د خپلي ژبې نوامیس او ګډ امانتونه ساتلي او ورته په درنو یې کتلي دي .

هغه څکه چي زموږ د پلرونو پات مړي او میراتونه نه یوازي پر پسرلي بلکي پر ټولو پښتنو او په ځانګړې توګه پر اوسنیو لیکوالانو، پاړکیوالو او ادیبانو دا حق دی چي د هغو د ساتني، پالني او د هیري د دوړو څخه د پاکېدني له پاره لیځي راولغړي .

ښاغلي پسرلي خپل ښایسته پاړکی په دې توګه په مخه اخیستی او د همدې ټولګي په ۱۵۸ م مخ کښي وایي

د میـــني تقاضا ده له هر زړه نه جـــارېدل
باران سوم د څورمني د هر چا کره مي شپه وه

ځوړمنی د (څ) پـه پېښ او د (م) او (ن) پـه زور کیـانو سره پښتو قاموس او پښتو پښتو تشریحي قاموس په پسرلي سره مانا کړی دی . (وګورئ د لومړي قاموس د دوهم ټوک د ۴۰۳ یم مخ وروستی او د دوهم یاد سوي قاموس د دوهم ټوک د ۱۶۴۶ م مخ وروستی ویی) .

بیا درونـد او پتمن لیکوال او د اوسمهاله شاعری منلي ښووانـد ښاغلي پسرلي د همدې کتاب په ۱۶۳ م مخ کښي وایي:

ستا په ښو ګــــندم د زړه زخمونه
خو دا کړېږ ستني دي سپم نه لري

د (سپم) ویی د پښتو قاموس د لومړي ټوک په ۶۰۱ مخ او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د دریم ټوک پـه ۲۵۱۹ م مخ کښي د ستني په سوري سره مانا سوی دی .

درانـه استاد او وتلي شـاعر ښاغلي پسرلي د ښکلو او دا ډول زیـرو غرنیـو وییو کار یـده د خپلـي خوږې شـاعری پـه زیـاتو برخـو کښي په کار اچولي چي د نورو ژبو ویونکي څه چي آن پښتانه هم ګوته په غاښ ورته پاتیږي .

هغـوی د کتـاب پـه ۱۶۶ م مـخ کښـي د خپـل پـاړ کي پـه وروستی برخه کښي دا ډول وایي:

خدایزده پسرلــــیه ! چي وری به دي ښری ویني
ستا جار کړی سني راته ښکاریږي چي اومړی وي

رښتیا هم (سنی) ویی زمالـه انده د پښتو د نیګـه ولي هیـرو وییو څخه دی چي ښاغلي پسرلي د هغه د سپېڅلي تندي څخه د وختونو پـر تې دوړي لیـري کـړي دي، دغـه ویـی پښتـو قـاموس د لومړي ټوک په ۶۴۹ م مخ کښي او پښتو پښتو تشریحي قاموس د دریـم ټـوک پـه ۲۷۱۹ م مـخ کښـي پـه انځـی سـره مانـا کړی دی . ښاغلي پسرلي مخ په وړاندي د شعري یون په یوه بل مزله یاني د نی کوڅې په ۳۲۲ م مخ کښي د یوه خواږ پاړ کي په یوه برخـه کښي بیا هم دا ډول غوره بېلګـي کـارولي او ځرګنـدوي چي:

دا ویني داسي نه ځي چي را تمي په ایرو سي
عبث د پټکي پیڅه د بسمل له پاره ســوځم

هغوی (پیڅـه) پـه ډېره ښـه ډول پـه ډېر ښایسـت او ښشپړه خوند او رنګ سره کـاروليې ده، دغه د خپلو پښتنو پلرونو او نیکونو ښکلی ژبنی سوغات یې د پښتني پټکي سره مل کړی او د هغه ځلا یې خو چنده کړیده او هم یې دغه د غرونو او کلیوالو سیمو ته د کدوال ویي پر سر د ناز لاس ایښی او بیا یې د ښاریځ ژوندانه د ادبي یون د لاري د یوه ځراغ په توګه کارولی دی .

دغه ویی د پښتو قاموس د لومړي ټوک پـه ۲۱۴ م مخ او د پښتو پښتو تشریحي قاموس د لومړي ټوک پـه ۸۸۱ یم مخ کښي په څنډه او برخه سره مانا سوی دی چي ښاغلي پسرلي هم د پټکي د څنډې یا تراړې په مانا او موخه کارولی دی .

د پښتـو د سوچه او نیګـه وییـو سـره د پسرلي مینـه د پښتنـو د ښېګڼو سره مینه ده د هغوی د دې هڅو او یـا اصلاً د هغوی د دغـه ژبنـی پـوهي څخـه ځرګنـدیږي چـي هغـوی بیـا د پښتـو لوړتـوب غواړي، دغـه هڅـي بـه وي چـي کـه خـدای کـول دا اوس خـواره او تـرټلې ملي ژبـه بـه بیا ښـه روغ مومي او پـه ښکلیـو ګڼـو بـه آغلې کیږي او ښکلا به یې بیا د تېر سوي برم د ژوند پـه مونـدلو لا غښتلې کیږي. زماله انده د هیرو وییو د کـاروني تـر ځنګ او د مرګـه څخـه د هغوی د ژغـورني تـر ځنګ پښتو بویـه د پرمختللي ادب لـرونکې هم سي چـي پرمختللی ادب یې علمي او پوهنیزو زېرمو. ژباړو او نوو نوو خېړنو او علمي پلټنو ته هم اړتیـالري چـي د دغـه پرمختګ د یون سالاران همدا ادیبان، لیکوالان او شاعران دي چـي هـم ژبـه د ښېګڼو څخه برخمنه کوي هم ژبې ته ادبي لوړتیا بخښي او هم ژبـه په علمي زېرمو درنوي . دوی تر هر چا د دغـه لوړتیا لار ټاکلای او غټولای سي او راتلونکي پښت تـه پـه دې لاره کښي بلي ډېوې پـه میراث پرېښوولای سي او پـه دې توګـه د ادبي ناموس د ژغورونکو ویـاړ تـر لاسـه کـولای سـي . د دغـه ویـاړ د عمومیـت او بشپړه خپراوي پـه هیلـه دا لیکنـه د ښاغلي پسرلي د پاړکو پـه هغـو برخـو سره پای تـه رسوم چي بیا هم وریکښي پښتو هېر او یا پـه زیاترو ځایونو او د زیاترو پـه منځ کښي د کـاروني د رنګ څخه بې رنګـه سوي ویي کار سوي دي . هغوی د نی کوڅې په ۳۴۴ م مخ کښي وایي:

هره ساه د ژوند له دکه جامه یوه قطره څاڅي
هر شرر ایرم دی چي د بل اور لــه پاینته ځي

یا:

سپک بوتی ورانی ته لټوي د بوربوکــی کلا
پورته کنګرو ته خو یا تېره ځي یا خښته ځي

۳۴۴ م مخ

ستوریو که یوه بل ته بیا غوړونه نژدې کـــړي وو
موږ به پوري وخاندو چي خوند یې د خواله یوسو

۳۴۵ م مخ

کــه مي بیا بیا هم نیسي زړه زلــفي درټولي لره
روېدو کوترو ته خو لومي ول پر ول نه ږدي ځوک

۳۴۷ م مخ

او په پای کښي:

چي نوک نه نیسي پر لاره او تیریږي
د آواز غوندي بي ټپکی رهــګذر یم

۳۵۶ م مخ

پوهنوال :- رسول باوري/هالند




# امیر عبدالرحمن خان

## او د هغه اندونه

یوه لنډه خو د پام وړ یادونه

"د دې لیکنې څخه غواړم دوې موخې تر لاسه کړم. لومړۍ دا چې د هغه وخت د پېښو په اړه د لاس وهنې پرته د اعلیحضرت عبدالرحمن خان اندونه هغو درنو لوستونکو ته را یاد کړم چې لېوالتیا ورسره لري، دویمه موخه دا ده چې لوستونکي په خپله د څه ناڅه یو سل او شل کالو هر اړخیزو بدلونونو په ترڅ کې د افغانستان ستراتیژیک او د جغرافیایي موقعیت ارزښت وارزولای سي. او د یادونې دد چې غواړم دا اندونه پرله پسې خو په وړو لیکنو کې برخې، برخې خپرېدو ته چمتو کړم"

اعلیحضرت عبدالرحمن خان د افغانستان د معاصر تاریخ څواکمن او مخکښ پاچا و چې د ۱۸۸۰ څخه تر ۱۹۰۱ ز پېر دیز کال پوري یې د افغانستان د ټولواک په توگه د دې هیواد سیاسي، اداري او نظامي بیا رغونه بشپړه او دولتي واکمني یې د اوسني افغانستان په دننه کې پلي کړل . د عبدالرحمن خان د ژوند، سیاست او په هیواد کي د هغه د کړو وړو په اړه زیات شمېر کورنیو او بهرنیو څېړونکو، مؤرخینو او سیاستپوهانو هر اړخیزي لیکنې او څېړنې کړیدي او هر یوه لیکوال د خپل لید لوري د افغانستان دا څواکمن او مدبر پاچا راپېژندلی او ښودلی دی . په دې لیکنه کي د نوموړي په اړه یوازي هغه برخي ته پام اړول کیږي چې د نوموړي پاچا ځانگړي اندونه او خیالات دي .

**په دولتي ادارو کي د ځواکمنو کسانو گډون :**

هغه مهال چي عبدالرحمن خان کابل ښار ته د واک د تر لاسه کولو په نیت ورسېدی د هیواد اداري جوړښت، نظامي ځواک، د دولت په نوم ثروت او خزانه او نوري اړیني اړانې یا په ټولیزه توگه له منځه تللي وې او یا یې له سره شتون نه درلود . د دې ټولو ناخوالو په اړه عبدالرحمن خان په تاج التواریخ کي لیکي :

**" پر تخت د ناستي پر وخت د یوې ستري ستونزي سره مخ سوم، د اوسېدو له پاره مي کور نه درلود، هغه پلارنۍ ودانۍ چي په بالاحصار کي وه، د انگلیسانو سره د جگړې پر مهال انگلیسي لښکرو ورانه کړې وه. په کرایه هم کور نه پیدا کېدی چي پکښي ژوند وکړم، ځکه چي په افغانستان کي هوټل او مېلمستون نسته، زما په اند په تاریخ کي به داسي هیواد نه وي چي پاچا یې د خوب او بیدېدلو له پاره ځای ونه لري. تر هغه چي په خپل نوم مي د یوې ودانۍ د جوړېدو چاري بشپړي کړې، د ولسي خلکو په کورونو کي واوسېدم" (تاج التواریخ، ص ۱۹۲)**

عبدالرحمن خان د خپلي واکمنی چاري له داسي مهاله پیل کړې چي د دولت او حکومت په نوم هر څه له منځه تللي وه، خو د پرله پسې هڅو او ړینو تدبیرونو په پایله کي یې یو داسي ځواکمن دولت په میراث پرېښود چي په هیواد کي ټولو مېشتو وګړو کابل د خپل هیواد پلازمېنه او د امر او نهي د صدور د ټاټوبي په توګه منلی و. هغه بریمن ارونه چي د یوه پاشلي هیواد څخه یې د یو موټي دولت د جوړېدو له پاره وکارول هغه په اداره کي د نورو هیوادوالو او په ځانګړې توګه د هیواد د بېلابېلو سیمو د ځواکمنو کسانو رابلل او په چارو کي د هغوی څخه مشوره اخیستل او یا په کار کي ګډه اخیستل دي. همدا ارونه او اصول وه چي عبدالرحمن خان د خپلي واکمنی پر مهال وکارول، نوموړی د دولتي چارو د ګډون په اړه لیکي:

**"هڅه مي وکړه چي د افغانستان د بېلابیلو سیمو د مشرانو ونډه په خپله اداره کي زیاته کړم او د دې تر څنګه مي هغه کسانو ته هم په خپله اداره کي ونډه ورکړه چي زما د حریف او رقیب په توګه به یې په هند او روسیې کي توان او نفوذ درلود، هغه مي د هند او روسیې څخه کابل ته راوبلل او د خپل زوی سره مي په نږدې اړیکو کي وساتل دا مشران پر څلورو برخو وېشلي دي: لومړی هغه کسان دي چي په شمال خیتزو برخو کي یې واکمنی درلودې او وروسته د روسیې له خوا ونیول سوې او مشرانو یې دلته پناه راوړل د بېلګي په توګه میر سهراب بیګ چي د قولاب د کورنی واکمن و، تور اسماعیل روشاني چي د بخارا د امیر زوی و. او دویمه برخه هغه کسان وه چي واکمنی یې زما له خوا زما د سلطنت په لومړیو کلونو کي زما تر ولکې لاندې راغلې، لکه: د میر یوسف علي او میر جهاندار او د هغوی کورنی. دریمه برخه هغه کسان وه چي د انګلیسانو سره یې جګړې کړې وې او یا د هغوی څخه مرور سوي وه، لکه: عمرا خان او میر مرادعلي او یو شمېر نور سرحدي قومي مشران، او څلورم هغه کسان دي چي د افغانستان څخه تښتېدلي او تللي دي چي دا ډله کسان هم پر پنځو برخو وېشل سوي دي: لومړی هغه کسان دي چي ځان ته ځواکونه او ملګري لري، لکه سردار نورعلي خان او د شېرعلي خان نور زامن، د کندهار**



**پخواني والي چې د هندوستان څخه راغلی او سردار محمد جانخان چې د شینوارو سره جنګېدلی و او اوس زما سره په دربار کې اوسېږي د مرحوم شېرعلي خان زوی سردار ابراهیم خان چې تر اوسه په هند کې اوسېږي او زما سره یې د دوستۍ اړیکې سته او داسې نور دویمه برخه هغه کسان دي چې د محمدایوبخان ملاتړي او اړوندان دي، چې زما تر ټولو زیات زورور رقیبان دي، او لازمه نه ده چې نومونه یې دلته یاد کړم، خو بیله څو تنو څخه نور ټولو هغه خوشې کړي او ډېر لږ کسان په هغو کې سته چې زما څخه واجب نه تر لاسه کوي او دریمه برخه هغه کسان وه چې د محمدیعقوب خان پلویان وه خو اوس ما ملګري کړي دي، په رښتینې توګه داسې کسان ورسره نسته چې ارزښت ولري او همدا ډول د محمدهاشم خان د یو څو تنو بېکاره کسانو پرته نور څوک نه لري، او څلورمه ډله هغه کسان دي چې د هندوستان او د روسي ترکستان متصرفاتو ته تښتېدلي دي د هغوی یو زیات شمېر نه کوم ځواک لري او نه د بیرته راګرځېدلو هیله، هغه کسان ما خپله د هغوی د بدو کړو وړو په وجه شړلي دي په دې ډله کسانو کې چې هر یوه د بخښنې غوښتنه کړېده، ما یې پر عریضه د بخښنې حکم کړی دی او وطن ته راګرځېدلي دي او پنځمه ډله هغه کسان دي چې د نمکحرامه محمداسحاق خان تر بغاوت وروسته په ۱۳۰۶ هجري کال وتښتېدل، د هغه ورونه اوس زما سره دي خو زه یې هر وخت مراقب یم په دې ډول زما د زوی د واکمنۍ له پاره سرخوږی نه دی پاته، او د پاچاهۍ هیڅ رقیب نسته چې د هیواد ارامښت او واکمني ورانه کړي او یا یې د خطر سره مخ کړي دا هم څرګنده ده چې که ډېر غیرتمن او زړه ور کس هم د بهرنیو دولتونو له خوا وګمارل سي او د افغانستان سره مخالفت او جګړه وکړي په یوازې توګه هیڅ نه سي کولای زه شه پوهېږم چې سیاست پوهان زما د تربور څخه چې په خپل واک کې یې ساتلی دی څه موخه لري، د دې له پاره چې څېري د ګاونډیو هیوادونو پاچاهانو غوښتني او هوسونه ونه منل سي، بیا به په وخت کېږه څني واخلي زما اولادونه هم باید زما د دې تدبیر او پندونو څخه پیروي وکړي، هر څوک چې د ګاونډي هیواده را شړل کیږي باید وساتل سي، دا څکه چې د مخالفت پر وخت د هغوی تر منځ دښمني ګټه راوړي" (تاج التواریخ، ص ۲۴۳ _ ۲۴۴).**

**د بهرنیو هیوادونو سره د اړیکو تعادل او موازنه:**

وړې ټولني او پاشلي ولسونه، ځواکمنو ګاونډیو هیوادونو ته د لاندي کولو او ناروا ګټې اخیستني له پاره ښه مارکېټ او بازارونه دي . هر زورور ګاونډي د خپلو وړو او کمزورو ګاونډیو ټولنو او پاشلو اولسونو څخه، د خپلو ګټو له پاره کار اخیستی او هغه یې یا د ځان کړي او یا یې د ځان په ګټه کارولي دي .

اعلیحضرت عبدالرحمن خان دخپل هیواد په شمالي سرحدي کرښو کې د روسیې زبرځواک درلود چې د ختیز پر لور یې د خپلي امپراتورۍ ریښې په زیاته بېړه زغلولي او په سهېلي خوا کې یې د انګلیسانو داسې لویه امپراتوري پرته وه چې په نژدې لنډ وخت کې یې د افغانستان د لاندي کولو یوه هڅه د افغانانو د پرله پسې او زړه ورو پاڅونو په نتیجه کي ناکامه سوې وه. خو د بلي نوي هڅې او تلاښ له پاره یې د هیڅ ډول تدبیر څخه مخ نه اړاوه. په داسې کړکېچن حالت کې د دوو نړیوالو سترو قوتونو تر منځ د یوې وړې سیمې خپلواکه ساتل د یوه مناسب او وړ تدبیر د خپلولو او پلي کولو اړتیا درلوده. د همداسې یوه تدبیر په نتیجه کې د اوسني افغانستان سرحدي کرښې د دې دواړو زبرځواکونو تر منځ د داسې حایلي سیمې په څېر پاته سول او خپل ژوند ته یې دوام ورکړ چې نه روس لاندي کړل او نه انګلیس تر خپلي قبضې لاندي وساتل. په دې اړه عبدالرحمن خان لیکي :

**"بهرني هیوادونه هم زما له پاره د تشویش او نا ارامۍ ډېره مهمه برخه ده،که د یوه هیواد سره تر بل هیواد لږ څه پلوي څرګنده کړم، هغه بل مرور کیږي، چې د هیواد د پاشلو او زیات وېشلو سبب ګرځي" (تاج التواریخ ص، ۱۹۵).**

د نولسمي پېړۍ په وروستیو لسیزو کې د نړۍ د هیوادونو حالات نظامي بر تریو او د نړۍ د وېش له پاره پوځي مانورو او فعالیتونو رانغښتي وه. چې د وخت د ځواکمنو هیوادونو یو ستره ممیزه وه. یو شمېر اروپایي هیوادونو د نړۍ د نورو وروسته پاته هیوادونو د لاندي کولو او خپلولو له پاره پرله پسې ګامونه اخیستل او د خپلي امپراتورۍ د پراختیا له پاره یې د هري بهانې او وسیلې څخه ګټه پورته کول او د خپلو هیلو د تر سره کولو له پاره یې د مخامخ جګړه ایز فعالیتونو څخه بیا تر ډول ډول سیاسي چالبازیو او قومي تربګنیو د راپارولو تر بریده. هره وسیله کارول . په دې اړه اعلیحضرت عبدالرحمن خان خپل اند داسې بیان کړی دی :

**" پوهېږم چې د اوسنیو سترو هیوادونو کړه وړه دا دي چې وړوکي سیمې د خپلو هیوادونو ملکیت وګرځوي، او د**

**وړو سيمو او هيوادونو خپل کول د بېلابېلو لارو چارو په وسيله تر سره کوي، د بېلګې په توګه د هغوی لومړی تدبير دا دی چې کمزوري هيوادونه سره په دننه کې ووېشي او بيا يې د لاندې کولو لـه پـاره زيـاتې سـتونزې نـه وينـې، د وړو هيوادونـو د لانـدې کولـو دويمـه طريقـه دا ده چـې سـتر هيوادونه پخپله منځ کې د پېښو د رامنځته کولو او اړ پېچ د را پيدا کولو په برخه کې هڅوني کوي او پټ ترونونه کوي، وايي چې که هغه هيواد ته لاندې کړې او هغه بل زه خپل کړم نو بيا به موږ خپل په منځ کې يو او بل ته ستونزه نه پيدا کوو چې سياست پوهان دې ډول اړيکو ته پولېټيک وايي، او دربېمه لار هم سترو هيوادونو د خپل ګټو د تامين له پاره پيدا کړېده، هغه وخت چې ستر هيوادونه يو د بل ګاونډيتوب ته رسېږي او د خطر احتمال وي نو بيا دا ستر هيوادونه په خپل منځ کې د يو شمېر وړو سيمو او هيوادونو پر خپلواکۍ موافقه کوي، او دا ښکاره کوي چې پر هغه سيمې او يا هغه هيواد باندې به د واکمنۍ خيال له سره ليرې کوو، په دې ډول وړو سيمو ته بيا يو ځواکمن هيواد په يوه يا بل ډول ځان نژدې کوي او ورته د دوستۍ کولو وړانديزونه کوي او دا وړانديزونه د ډېرو ښو وعدو سره ملګري وي، لکه دا چې زما او ستا ملګريتوب به دا ګټه هم لري چې د نورو هيوادونو څخه به دې د خطر په وخت کې مرسته کوم او هغوی به ستا واکمنۍ تـه ګـواښ نـه سـي کېـدای، او پـه دې ډول نـوري وعدې، هغه وړوکي سيمه او يا هيواد خيال کوي چې دا زما د واکمنۍ په رسميت پېژندل دي خو لا څه موده نه وي تېره چې يوه يا بله بهانه ورته پيدا کړي او يا يې د بې‌طرفۍ په نه کولو او يا وعدې په ماتولو متهم کړي او کله نا کله د هغه هيواد اوسېدونکي راوپاروي چې پر تاسو ظلم او تعدی کېږي او په دې ډول يو دوې نوري خبرې هم ور زياتې کړي او بيا هغه خپلواکه سيمه يا هيواد تر خپلې واکمنۍ لاندې راولي، کـه چېري ګاونډي هيواد ووايي چې دا خپلواک هيواد بايد تخليه او خپلواک پرېښودل سي په جواب کې يې وايي چې د نوموړي هيواد واکمن زما سره تړون کړی او خپله سيمه يې زما په ځواک پوري تړلې ده اوس دا زما د واکمنۍ سيمه ده تاسي حق نه لری چې زما د واکمنۍ پر سيمو برید یا حمله وکړی" (تاج التواريخ، ص ۱۰۴ _ ۱۰۵).**

**د افغانســتان شــتون پــه ځواکمنــه اداره او يــووالي کي دی.**

د يوې سيمې د اوسېدونکو او يا د يوه هيواد پـه نوم د وګړو شتون د هغه هيواد او سيمې د ميشتو ولسونو په يووالي کې دی. دا هغـه ځانګړنـه، نـه ده چـې د افغانستان لـه پـاره يې بېلـه کـړو. خو هغـه څـه چـې د اعليحضرت عبدالرحمن خان پـه انـد د دې ځانګړنې سره يو ځای سوي دي هغـه د يـوې ځـواکمنې اداري لـه پـاره د يـوه مېتکـر، غيرتـي او ځواکمن لارښود شته والی دی. پـه دې اړه نوموړی خپـل انـد د کورنې پلېتيک تر سرليک لانـدې څېر کـې کې داسې بيان کړی دی:

**"اوس د لوی خدای ﷻ شکر ادا کوم چې افغانستان د ودې او لوړتيا پر لور ځي، خو په دې کې شک نسته چې افغانستان داسې يو هيواد دی چې يـا بـه د يـوه ځـواکمن دولت خاوند وي او يا به يې نوم د هيوادونو په لړ کې نه وي دا دويم حالت يې هغه وخت دی چې د دې هيواد واک د يوه بې تجربې او ناتوانه کس په لاس ورسي. د دې له پاره چې ځرګنده خبره وکړم، دربېم حـال نـه ليدل کېږي کـه افغانستان په وړو او کوچنيو ټوټو ووېشل سي د ژوند توان نه سي پيدا کولای دا ځکه چې افغانستان دومره پوهېدلی هيـواد نـه دی چـې د بهرنيـو د لاسوهنو چاره دې پـه خپلـه وکړي او خپل ځان وساتي په هغه صورت کې په پوره باور وايم چې وړې او ټوټه سوي برخې به، ځواکمن هيوادونه په خپلې واکمنۍ کې ورګډې کړي او دا هم ځرګنده ده چې په يوازې توګه د روس او يا د انګلستان هيواد نه سي کولای ټول افغانستان تر خپلې واکمنۍ لاندې راولي که د روس دولت پر دې هيواد واکمن سي، د انګليس دولت به ونه سي کړای چـې د ځـو اړخيـزو خطرونـو پرتـه هندوستان د ځـان سـره وساتي او که د انګليس دولت افغانستان تر خپل واک لاندې راولي، روس نـه سي کولای چې پر کراره کښېنې او خپل څنګ تـه د انګليس دولت ووينې، او دا يـوازې هغـه وخـت شـونې ده چـې د افغانسـتان يـوه برخـه تـر خپلـې ولکـې لاندې راولي، او که د افغانستان واکمن يو هوښيار، غيرتمن او دوراندېښه وي پـه هغـه صورت کـې د دې لـه پـاره دليـل نسته چـې دا هيـواد دې يـو ځـواکمن او غښتلی هيواد نـه وي دا ځکـه چـې افغانسـتان همـدا اوس د نـړۍ د هغـو هيوادونو په څېر شونتياوې لري چې په نړۍ کې ځواکمن هيوادونه يې لري، او که پر هيواد داسې واکمنان حاکم وي لکــه د بخــارا او هندوســتان بيــا بــه ډېــر ژر د يــوه تړون او معاهدې تر نوم لاندې يوه يا بل ځواکمن هيواد ته تسليم او هيواد به پرديو ته وسپاري" (تاج التواريخ ص ۱۱۹ _ ۱۲۰).**

د لومړۍ برخې پای

علامه حبیبي

# په پښتو کې د ادبي تحلیلونو بنسټ ایښوونکی

عبدالقدیم پتیال

موږ که د لوی استاد علامه پوهاند عبدالحي حبیبي په باب څه کاږو، نو دا په زغرده ویلای سو چې لوی استاد علامه حبیبي په حقه سره د پښتو د معاصر فرهنګي بهیر سرلاری او یا بنسټ ایښوونکی دی. په پښتو کې د لومړي ځل له پاره د لوی استاد ادبي تاریخ لیکنه هغه لوی ځېرکی دی چې درست کتابونه پر لیکل کېدای سي، لوی استاد نه یوازي په افغانستان کې په لومړي ځل ادبي تاریخ لیکنه را پیل کړه. بلکې په کوټه او پېښور کې هم تر لوی استاد وړاندي چا دا کار نه و کړی. د لوی استاد "تاریخچهٔ شعر پښتو" او په ځلورو ټوکونو کې د پښتو ادبیاتو تاریخونه هغه آثار دي چې په اول وار پر پښتو باندي د ادبي تاریخ لیکني ور پرانستل سو. دغه راز د انتقادي متونو د ترتیب او نشر کار هم لومړی ځل لوی استاد علامه حبیبي را پیل کړی دی. د ادبي تیوري او ژبنیو څېړنو کار هم لومړی ځل علامه حبیبي په پښتو کې را شروع کړ. دغه راز په پښتو کې معاصره تذکره لیکنه هم د لوی استاد په ابتکاري هڅو سره را پیل سوه.

زه په دې وړوکې مقاله کې غواړم چې د لوی استاد علامه حبیبي د لیکوالي پر یو بل اړخ څه ناڅه وږغېږم چې هغه اړخ ته یې زه "ادبي تحلیل" وایم. او له ادبي او تحقیقي لیکني سره د پر نړد ږوالي لري او دا په لیکوالی کې یو بېل او د پر ګران او زړه چاودونکی کار دی.

موږ که د پښتو د معاصر فرهنګي بهیر د لیکوالو آثار مطالعه کاندو، نو په پای کې به دا پایله تر لاسه کړو چې د ادبي تحلیلونو بنسټ هم لوی استاد علامه حبیبي ایښی دی. له بده مرغه موږ په پښتو کې د پر کم داسي لیکوال لرو چې دغه راز ادبي تحلیلونه دي یې کړي وي. په پښتو کې زه "پتیال" د لوی استاد علامه حبیبي تر دغه ډول لیکنو وروسته ارواښاد سرمحقق محمدصدیق روهي وینم چې په ډېره پیمانه یې دغه راز ادبي تحلیلونه کړي دي.

لوی استاد علامه حبیبي پر دې سربېره چې په خپله هره علمي لیکنه کې ګام پر ګام او کرښه کرښه د اعتبار وړ مأخذونه، د مخونو شمېر او کرښې ښیي، ډېري داسي لیکني هم لري چې د خپل نوښتګر ذهن په مرسته یې پر یوه موضوع په ډېر نوي شکل او ابتکاري ډول له خپله ځانه داسي تحلیل کړی وي چې لوستونکی ګوته په غاښ ورته پاتېږي.

لوی استاد علامه حبیبي لومړی کس دی چې په پښتو کې یې په ډېر نوي (Modren) شکل سره د نړیوالو ادبي مکتبونو په رڼا کې د ډېر داسي موضوعات د علمي او ادبي تحلیل په برکت روښانه کړل چې تر دوی وړاندي هیچا پام نه وو ورته کړی.

لوی استاد د خپلو ادبي تحلیلونو په باب د (آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه) د کتاب په سریزه کې وایي:

"د پنځوسو کلو را په دېخوا د پښتو ژبې او ادب په باب څېړني او ګروېږني کوم. په دغو لیکنو او څېړنو کې ځیني داسي نوشتې دي چې پر تحلیل بنا دي او ځیني یې بیا پر تحقیق. زما د دغو لیکنو عمومي مسیر داسي دی چې د

پښتو د ادب، ادبي رجالو او ځينو کتابو په باب څېړنې او تحليلونه لري". (آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه، د لوی استاد سريزه، ۱۳۶۱ لمريز کال د کابل چاپ).

زما دا نظر دی چې کـه مـوږ د علامـه حبيبي ... د ليکوالـی پـر ابتکـاري اړخ ږغيـږو، نـو بايـد د دوی د ادبـي تحليلونو خواته هم توجه وکړو او دا وواېو چې په پښتو کې په لومړي ځل په ډېر نوي طرز سره علامه حبيبي ... ادبي تحليل ليکنه را پيل کړې ده.

د يو چا د شعر او يا نثر تحليلول او بيا هغه د يوه نړيوال ادبي مکتب په رڼا کې څېړل او يا په يوه ادبي مکتب پوري تړل، څه آسانه خبره نـه ده، دغسـي کـار بشـپړ علمـي صلاحيت، نړيوالي او پراخي مطالعې، يو ابتکاري او نوښتګر ذهن او يوې پخې تجربې ته اړتيا لري او دغه ټول کمالات په لوی استاد کې راغونډ سوي ول چې نن روڅ موږ ورته په پښتو کې د ادبي تحليلونو بنسټ ايښوونکی وايو.

څرنګه چې ويـل کيـږي چې لوی استاد د خوشحال پېژنـدني د کـار بنسـټ پـه اساسـي توګـه ايښـی دی، او د "خوشحال د جهانداری نظريه" نومې اثر او "د خوشحال پـه اشـعارو کـي انتقـادي پانګـه" نـومې اثـر يې د خوشحال پېژندني محصول دی، نو دغسي آثار يې ډېر ځايونـه داسـي ادبي تحليلونـه لـري چـي تـر دې وړانـدي هيچا توجـه نـه وه ورته کړې.

لوی استاد علامـه حبيبي ... پـه پښتو کـي پـه لومـړي ځـل سـره د ځينـو نړيوالـو ادبـي سـبکونو او مکتبونـو اهـداف پښتو ته له خپل دقيق تحليل سره او له خپلو ځينو منونکو او انتقادي نظرياتو سره را انتقال کړي دي او پښتانه يې پـه اول ځـل لـه خـارجي ادب سـره بلـد کـړي دي او د ځينـو پښـتنو ليکوالو او شاعرانو آثار يې د دغو ادبي مکتبونو په تله کې په خورا علمي او هنري ډول سره تللي او تحليل کړي دي.

د "خوشحال خان د ايډياليزم او رياليزم پر پېچومي" نومې مقاله يې زموږ د دې خبري ښه صدق کولای سي، لوی استاد د دغي مقالې په پيل کي وايي:

"آيا د خوشحال خان هنر د هنر له پاره و، که د ژوند لـه پاره؟

د ايډيـاليزم يعنـي اصـالت تصـور او خياليـت ريښـې د انسـانانو پـه شـاعری کـي ډيـري قـديمي دي، هـر کلـه چـي انسـان لـه خـورا قـديمو زمـانو څخـه د فطـرت پـه جـذباتو او ولولو کي د خپلو پټو ميلاناتو ترجماني د شعر په ژبـه وکـړلـه. هغو اشعارو غير مادي او روحاني او د عالم بالا څخـه يو منبع

درلوده او شاعر د هغـه غير مشاهد او خيالي عالم استازی ګڼل کېدی.

د يونان قديم اساطير وايي چي آمفيون د جوپيټر زوی هغه ميتالوژيک شاعر او سندرغاړی وچي د تب د ښار پـه ودانولو کي يې په ښه ږغ او سحرناکو نارو، خپل ارغنون واهه او دې سندرو به داسي اثر درلود چي کاڼي به چاودل او شاعر تـه بـه يې راخغستل او ده بـه د کلا پـه جوړولو کي کارول. د چوپيټر لـه لوڼو څخـه يوه (موس يـا ميوز) د شعر الهـه وه. چـي شـاعرانو بـه د هغـې د جـلال او جمـال لـه لـوړه عرشـه الهـام اخيسـت. د شـعر د خيـالي روايـاتو د غـه لـوړه افسانه ډېره پخوانی ده. خو په دې نژدو پېړيو کي امانويل کانت د جرمنـي مشـهور فيلسوف او محقـق د ايډيـاليزم او خيالي شاعری مکتب پـه مرتب ډول وپرانست، دی وايي چي هنر او آرټ پخپلـه مطلوب او بالذات مقصود دی، نه د کوم بل غايت له پاره، دا هغـه نظريـه ده چي آرټ د آرټ لـه پاره بولي او هغه په يوه مجرد او غير مادي ديناميزم پوري مربوط ګڼي او وايي چي د دنيا انسانان خو په نژاد او جنس او وينه او مذهب او مشرب کي سره مختلف دي، مګر د دوی په شعر او آرټ کي يو ډول وحدت او د معانيو تجانس او د افکارو هارموني سته او دا خبره ثابتوي چي د انساني آرټ منبع يوه آسماني او روحاني مشترکه او واحده سرچينه ده. زموږ شرقي مفکران او شعراً هم آرټ لره د جمال يو عالي او آسماني غيبي منبع مني او مخصوصاً صوفيان خو بل څـه نـه ويني او نه يې مني...

اسلامي عرفا هم لکـه غربـي مفکـران، د جمال او آرټ مبدأ پـه يـوه مـاوراء المـاده دنيـا کـي لټـوي او "مولانـا جـلال الدين بلخي" هم د هغي غيبي دنيا په ياد سندري وايي او خپل آرټ د هغي معنوي او روحاني دنيا د يوه واړه انعکاس اثر او د هغې نړۍ د يادولو سوز و ګداز ګڼي:

بشنو از نی چون حکایت میکند
وزجدائیها شــــکایت میکند
کـــز نیستـان تا مرابـبریده اند
وزنفیرم مرد و زن نالــــیده اند

همدغه مقام دی چي د اسلام لوی پوهنيال حجه الحق ابن سينای بلخي هغه ته اشاره کوي:

"هبطت اليک من المحل الاء رفع و رقاء ذات تفزز و تمنع" تاسي وګورئ چي د آرټ ايډيالي مبدأ قديم يونان او اروپا او د اسلام د صوفي او مفکر شاعر تر منځ مشترک دی، که څه هم يوناني مبدأ فقط يو خرافي او ميتالوژيک روايت

دی او د جرمن شیلر هم تش خیال ځغلولی دی او اسلامي
مفکرین هم له یوې داسې غیبي دنیا او غیر مادي او
نامحسوس لوړه مقامه گډ دي چې انسان هغه نه ولیدلی او
نه یې لیدلای شو، ځکه چې هغه یو ملکوتي او ماوراء المادة
او میتافزیکل دنیا ده، خو بیا هم دغه فکر او دغې تیوري په
قرنونو قرنونو د انسان پر دماغ حکومت کړی دی او د آرټ
هغه عالي مبدأ چې یوه یوناني ایډیالسټ فرض کوله، هغه د
بلخ او قوانیي قلندر هم تصور کړې ده او کله چې صوفي
پښتون شاعر رحمان بابا د شعر ارغنون رغوي، نو د مولانا
بلخي نیستان را په یادوي او په هغو میو مست سکاري له
کومه جامه چې د یونان پخواني شاعر یا د جرمني پیاوړی
سخنور مست و، ایډیالیزم وایي: آرټ خپله مقصد او هدف
دی بل غرض نه لري، د شعر، موسیقي، نقاشي او ټولو نفیسو
صنایعو د الهام منبع "عالم غیب" دی "(آسماني نغمې او
لاهوتي سرودونه، د لوی استاد علامه حبیبي رح، خوشحال
خان د ایډیالیزم او ریالیزم پر پېچومي، ۳۸ ــ ۳۹ ــ ۴۰
مخونه) .

دلته موږ ته لومړی د علامه حبیبي د پراخې
مطالعې درک معلومیږي او بیا د دوی د تېز ذهن یو ډېر ښه
تحلیل راته څرگندیږي، چې یوه نړیواله موضوع یې یوازې
له یوه یا دوو آثارو څخه نه تحلیلوله، بلکې د یوې
موضوع په باب یې له ډېرو آثارو څخه استفاده کوله او د هر
اثر کره او کوټه اړخونه یې په خپلو قوي دلایلو تحلیلول، زه
چې دغه لیکنه کوم نو څنگ ته مې یو کتاب پروت
دی چې نوم یې (مکتبهای ادبی) دی او په هغه کتاب کې
هم د ایډیالیزم او ریالیزم دواړو په باب ډېر اوږده بحثونه
سوي دي او دغه موضوع چې (آیا هنر د هنر له پاره دی؟)
هم یوه درسته برخه ورته ځانگړې سوې ده، خو تاسو باور
وکړئ چې ماته ښه قناعت نه سي ورکولای، هلته یوازې
غربي ایډیالیزم او ریالیزم څېړل سوی دی او دغه د هنر
موضوع هم یوازې غربي مأخذونه لري، خو
علامه حبیبي رح یوازې پر دغو آثارو اکتفاء نه کوي، بلکې
دوی د مولانا بلخي اشعار هم تر څېړنې لاندې نیولې
دي، د ابن سینای بلخي نظریه یې هم راوړې ده او د
پښتون صوفي شاعر عبدالرحمن بابا اشعار یې هم په
دغه موضوع ورگډ کړي دي او بالآخره یې یوه ښه
پایله لاسته راوړې ده او دغه ستوخه موضوع یې په دونه
عالي ډول تحلیل کړې ده چې تر دې وړاندې په پښتو کې
هیچا هم په دغه ډول نه وه تحلیل کړې او دلته نو موږ ته د
لوی استاد علامه حبیبي رح ادبي تحلیل ښه ترا
څرگندیږي .

موږ باید یو حقیقت ومنو، که څه هم دا به لږ نوکې
تریخ غوندې وي او هغه د چا خبره "حقیقت او د گلاب گل
دواړه اغزي لري" او دا حقیقت به ښایي اغزي ولري، خو
منل یې هم ضرور دي او هغه دا چې موږ لوی استاد علامه
حبیبي رح په هیڅ گون په سمه توگه نه پېژنو، څونه چې د
دوی علمیت و، موږ یې هغه علمیت او لویي په سلو کې
پنځلس هم نه پېژنو، بس یوازې دونه پوهېږو چې لوی استاد
د افغانستان یو لوی عالم و، یو علامه و او یو پوهاند و او پلانی
او پلانی کتاب په لوی استاد پوري اړه لري، یا پلانی مقاله د
لوی استاد علامه حبیبي ده او یا چې ډېره توره مو وهلې وي
نو کله ـ کله به مو یوه مقاله پر کښلې وي، خو ما وړاندې
وویل چې په سلو کې پنځلس د ده په علمیت خبر یو، له
علمیت څخه خبر بدل مې هدف دا دی چې هغه پنځلس
چې په خبر یو، هغه به دا وي چې مثلاً: تاریخ مختصر
افغانستان د لوی استاد تاریخ دی او په ډېر دقت سره کښل
سوی دی، خو ما "پتیال" تر دې گړیه داسې کره مقاله نه
ده لیدلې چې پر یاد سوي تاریخي کتاب دي کښل سوې
وي او دا دي پکښې څرگنده سوې وي چې دغه تاریخ پر
کوم او څنگه معیار کښل سوی دی او د دغه تاریخ د لیکنې
سبک څنگه دی، یا مثلاً موږ دونه پوهیږو چې "منابع اولی
تاریخ هنر کتاب سازی در عصر تیموریان" د لوی استاد یو
اثر دی او پر دغه موضوع باندې کښل سوی دی، خو دا نه ده
راته معلومه چې د دغه کتاب ارزښت څنگه دی او پر دغه
موضوع چې کښل سوی دی آیا تر دې وړاندې هم نورو
کسانو پر دغه موضوع کار کړی دی او که یا؟ او که یې
کړی وي هغه څنگه دی او له دې کتاب سره یې څنگه
پرتله کولای سو. دا هغه خبرې دي چې بېله دغو موږ په
بل ډول علامه حبیبي رح نه سو پېژندلای او نه یې علمیت
په هغه اندازه چې و راته څرگندیږي .

ما په کوټه کې ډېر لیکوال ولیدل، پخپله په کندهار
کې مې ډېر کسان ولیدل او په کابل کې مې هم ډېر خلک
ولیدل چې د گران مطیع الله خان روهیال په زیار راټولې
سوې مقالې (د علامه حبیبي شل مقالې) یې په لاس کې وې
او ویل یې چې دا علامه حبیبي څونه غټ سړی و، د پښتو یوه
اوسمهالي لوی او مشهور شاعر یو وخت د پټې خزانې د
مخالفینو ملاتړ کاوه خو کله چې یې د (علامه حبیبي شل
مقالې) ولوستلې، نو سمدلاسه یې له مخالفته لاس

واخیست، او علامه حبیبي یې د سیمي یو حقداره لوی عالم وګڼي . زه له خپلې آرې سکالو څخه ووتم او په دې کار سره ډېره بخښنه غواړم، دلته له دغې یادونې څخه زما مطلب دا و چې موږ اصلاً علامه حبیبي ـ نه پېژنو، که موږ د لوی استاد یوازې د (آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه) لیکلی کتاب مطالعه کاندو، نو بیا یې وپوهېږو چې لوی استاد څوک وا او همدغه کتاب ماته د دغې لیکنې الهام راکړ چې علامه حبیبي په پښتو کې د ادبي تحلیلونو بنسټ ایښوونکی بولم .

علامه حبیبي ـ په پښتو کې لومړی سړی دی چې ځیني شاعران یې د نړیوالو ادبي مکتبونو تر اصولو او قوانینو لاندې ودرول او داسي یې تحلیل کړل چې بالآخره یې له نړیوالو سره په یوه کتار کې څنګ پر څنګ ودرول او دغه کار تر دوی وړاندې هیچا نه و کړی .

د ښکلا او جمال فلسفه یوه داسې سخته موضوع ده چې له پېړیو پېړیو راهیسې ډېر عالمان کار پر کوي خو آن یو ټاکلی تعریف لا نه دی ورته موندل سوی، د شاعرانو په اشعارو کې د یوې تلپاتې ښکلا او د جمال د فلسفې څرکونه په علمي تحلیل سره څرګندول، یوه داسې سخته موضوع ده چې ډېر کم کسان زړه ورته ښه کوي چې پر دغې فلسفې کار وکړي، خو لوی استاد علامه حبیبي ـ د لوی روحاني شاعر شیخ متي (۶۲۳ ـ ۶۸۸ هـ ق) شعر یې د ښکلا او جمال د ستونزمنې فلسفې په رڼا کې داسې تحلیل کړی دی چې لوستونکي ته یې د "خو" خای نه دی پرې ایښی، تاسو د دوی د دغه ادبي تحلیل یوه برخه وګورئ تر څو زموږ خبره په زبات ورسېږي :

"شیخ متي د پښتنو هغه خدایي شاعر دی چې د جمال او ښکلا اسرار د شعر په ژبه څرګندوي، دی نړۍ ته په داسې نظر ګوري چې پخو عارفانو او لاهوتي رجالو په څېر هر څه ښکلي ویني او کوم وخت چې د ترنک پر غاړه ناست وي شاوخوا لوړي ژوري، کښته پورته، غرونه رودونه، دښتونه او مېرې ټول د یوه ابدي او ځلاند جمال په وړانګو کې غرق ګڼي، دی ښکلا ویني، ښکلا اروي، ښکلا حس کوي، د ښکلا تجلیات پر کاینا تو طاري او ساري ګوري او کله چې شپون د یوې شنې او زرغونې غونډۍ په لمن کې خپله شپېلۍ رغوي، یا یو مین ځلمی په زهیر رغ د مینې سندرې لولي نو شیخ متي په دې ټولو کې د حسن هغه مبدأ ته انتقال کوي چې د جمال سرچینه ده او هر آرټ او بدیع صنعت هم له دغې ښکلا څخه رڼا اخلي او تحقق مومي"

(آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه د لوی استاد علامه حبیبي ـ ۶۸ م مخ) .

لوی استاد علامه حبیبي ـ د پټې خزانې په موندلو سره لومړی ځل شیخ متي په خلکو وپېژاند، ور پسې یې د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې مفصله لیکنه وړاندې وکړه او د ده آثار، اشعار، کورنۍ او اولاده یې په تفصیل سره خلکو ته ور معرفي کړل، خو په آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه کې یې د ده د شعر فلسفي رنګ په داسې ډول تحلیل کړی دی چې بېله شکه یې یو بې جوړې او بې سیاله تحلیل ګڼلای سو چې نه تر دوی وړاندې چا دا کار کړی و او نه تر دوی وروسته په پښتو کې په دغه ډول ادبي تحلیلونه وسول، البته تر علامه حبیبي ـ وروسته ارواښاد سرمحقق روهي هم دغه راز لیکنې لري، خو هغه پر خپل ځای خپل بېل ارزښت لري او تر ارواښاد روهي وروسته ارواښاد محمد ابراهیم عطایي هم دغه راز ځیني ادبي تحلیلونه لري .

لوی استاد علامه حبیبي ـ د شیخ متي په مقاله کې وړاندې پسې ځي او د دغه فلسفه د ښکلا او جمال په رنګ کې داسې صیقلوي چې لوستونکي ته پوره قناعت ور کوي، دوی زیاتوي :

"ښکلا یو ژبرنده او جاویدان مبدأ فیاض لري، د زمان او مکان په مسیر کې لګه د بر ښنا ګرځېدونکي او تېرېدونکي څپې د ښکلا تجلیات ګرځي راګرځي او خپل کمال ښيي، دا جمالي او تجلیاتي سېر او دوران، د نړۍ پر مخ یوه تماشا جوړوي او هم دغه ننداره دي چې د عارف شاعر ستر ګي ورته اریاني وي او ابن فارض مصري عارف ناره وهي چې "زدني بفرط الحب فیک تحیراً" او شیخ متي دا رڼا او ښکلا او تماشا د شعر په ژبه داسې څرګندوي :

خاونده ! ښکلې ستا جمال دی
ښکاره یې لور په لور کمال دی
که ورځ، که شپه، که پېړۍ، کال دی
ستا د قدرت کمکي مثال دی
ستا د لورونو یوه رڼا ده
دلته چې جوړه تماشا ده

ښکلا پخپله یوه لایتناهي او بې پایه حادثه ده څوک چې نه ورته ګوري، د هغو پر ستر ګو تپه تیاره ده، دوی جمال نه پېژني، ننداره نه ویني او له دې زړه خوځوونکي تماشا څخه محروم وي . پاته په (۵۲) مخ کې

# وجدان یا ضمیر

د عبدالمالک همت ژباړه

انسـان د خپـل زړه پـه کـومي کـې يـو ځـواک احساسوي، چـې هغـه لـه بـد کـار کولو څخـه هغـه مهال راګرځوي چې د هغـه کولو تـه وهڅول سي او د هغـه پـه کولو پسې سي . کله چې انسان د دغسې کړني کولو تـه وپاڅول سي او هغه پيلوي نو دغـه مهال احساسوي چې د دغـه ځواک د اغېـزي د نـه منلو لـه امله بـه د هغـه د زړه راحت، ډاډ او سکون له منځـه ولاړ سي . تر دې چې تر دغسې کار کولو وروسته دغه ځواک، هغـه د دغـه کار د کولو له امله تـل تر ټـې او زوروي او پـر خپلـه دغسې کړنـه پښېمانه ښکاري .

دغه راز دغه ځواک هغه ته د "واجبو او اړينو کړنو" د تر سره کولو حکم ورکوي، چې کـه هغـه د دغـه حکم سره سم دغـه واجبي او اړيني کړني تـر سره کـړي نو پـر دغو کړنو باندي د همېشه توب او استمرار له املـه پـاى يو اتل ځني جوړ سي او کله چې دغسې چارې بشپړوي، نو ډاډ او هوسايي ور پـه بر خـه کيږي او د خپـل ځـان لوړ تيا احساسـوي . د دغســې امــر کــوونکي او منـع کــوونکي (حاکم او مانع) ځواک نوم "وجدان يا ضمير" دی او لکـه څنګه چې تاسو اوس ولوستل پـه انسان کې دغه ځواک تر کړني دمخه، د هغې سره سم او تر هغې وروسته په کار بوخت ښکاري . دغه ځواک تر عمل دمخه د اړين عمل پر لوري لارښوونه کوي او د ناواجب عمل لـه کولو څخـه زړه ته ببره اچوي، د عمل سره پاتيږي، انسان د ښـه عمل اهتمام او له بد عمل څخه پرهېز ته وربولي او په دې توګـه له سرې څخه اتل جوړوي چې بيا د اطاعت او فرمان منلو په مهال خوښي او هوسايي راوړي او د اطاعت نـه کولو پـه صورت کـې سـړي تـه خـواري او پښېمـاني ور پـه بر خـه کوي .

مـوږ د دې وجـدان احسـاس داسـې کـولای سـو چـې ګـواکي هغـه يـو آواز دی چـې زمـوږ د زړه لـه تلـه راوزي او موږ ته د اړينو چارو د تر سره کولو حکم او د نـه تـر سـره کولو په صورت کې زموږ زړه ته ببره رااچوي . "که څـه هم پـه موږ کې د هغـه د حکـم د تعميل پـه صورت کې د اجـر هيلـه او د هغـه مخالفت پـه صورت کـې د سزا ببـره مطلقه نه وي" .

داسې وګڼئ چې کـه کوم شي يو ځاى پـروت وي او د يوه بېوزلي ستر ګي پـر ولګيږي او د هغـه بـاور وي چـې لـه يوه خدايـه پر تـه بـل څـوګ هغـه نـه ويني او نـه تـر قـانوني نيوني لاندي راځي، نو دی د دې سره سره هغه شی د هغه

ښتن ته یا یې حکومت ته وسپاري نو تاسو وواياست چې
دی دې کار ته څه شي چمتو کړی دی؟

وجدان او ضمير !

دلته ښله وجدان یا ضمیره بل څه نسته . دغه وجدان
انسان د غاړې د فرض ادا کولو ته یوازې د خارجي ثواب یا
عقاب له امله نه چمتو کوي، بلکې د هغه د نفس د هوساینې
یا د پښېمانۍ او ملامتیا د عذاب څخه د ژغورنې له پاره یې
هم دې کار ته وربولي . ځیني پوهان وايي چې: انسان په
خپل دننه کې دوه آوازه احساسوي، يو د وسواس آواز او بل
د وجدان آواز . چې دا دواړه یو دبل په وړاندې د کرکې او
مینې آوازونه دي . دا له دې امله دي چې په انسان کې دوه
ډوله تمایلات وي، د ښېګڼو تمايل او د بدیو تمایل . نو کله
چې د بدیو تمایل له منځه ولاړ سي نو انسان په خپل دننه
کې د وسواس او غولېدني آواز اوري، کوم چې هغه د شر پر
لوري وربولي او کله چې د ښېګڼو تمايل له منځه ولاړ سي نو
د وجدان آواز اوري، کوم چې هغه له شره راګرځوي او د
خير پر لور يې وربولي . له دې امله داسې ښايي وويل سي
چې وسواس د شر آواز دی چې د خير د غالبېدو په مهال
اوړېدل کيږي او وجدان د خير آواز دی چې د شر د غالبېدو
په حالت کې اوړېدل کيږي .

څکه نو صالح او نېک چاري وګړی هغه دي چې د
شفقت، عدالت، همت او سخاوت غوندي ښکلو او سترو
صفتونو تمایلات په خپل ځان کې ژوندي کړي او د هغو د
ضد صفتونو تمایلات له ځانه لیري کړي . خو دغه لیري
کړل سوي تمایلات په داسې یوه مورچل کې اوسي چې
کله هم د یو لږ څه سر پورته کولو موقع په لاس ورسي نو
سمدستي ځان ښکاره کوي او انسان د شر پر لوري
ورښويوي، چې دې ته وسواس وايي .

د دې پر خلاف خبیث انسان هغه دی چې د ظلم او
غرور غوندي تمایلاتو ته نوی ژوند ور کړي او خپل يې کړي
او د خير تمایلات له منځه یوسي . خو دغه له منځه تللي
تمایلات له یوې لا نه یوې لاري څخه راخرګندېږي او دغه
ظالم وګړي ته د هغو د اطاعت او فرمان وړلو بلنه ور کوي او
د بدی پر لار د تللو او ټینګار څخه يې په زړه کې ښېره
اچوي، چې د دغه آواز نوم وجدان یا ضمیر دی .

ناخرګنده دي نه وي پاته چې وجدان د امر او نهي
پیغامونه د انسان د رفعت او لوړوالي د کچو په اعتبار بېل
بېل وي . څکه یو وګړی داسې وي چې د یوه عمل له امله
په خپل وجدان کې سخته ملامتیا او کرکه احساسوي، خو
بل بیا د همدغه عمل په تر سره کولو سره دا لا هم نه
محسوسوي چې ګواکې دا کوم بد کار دی . له دې امله
ډېر ښه انسان هغه دی چې د انسانیت د لوړې کچې څښتن
وي او د وجدان شعور يې ډېر تېز او ذکي الحس وي .

**د وجدان غوړېدنه**

په ځارويو کې ډېري داسې ډلې سته چې ځانګړي
عادتونه لري او يو له بله د دغو عاداتو له مخې سره پېژني او
که له هغو څخه کوم يو له دغو ځانګړو عاداتو مخالفت
وکړي نو د ډلې په اند د سزا وړ وي . له دې څخه دا
جوتيږي چې له دوی څخه هر يو څه ناڅه دا شعور ارومرو
لري چې زموږ ځيني کارونه داسې دي چې د کولو دي او
ځيني د کولو نه دي .

مېږيان ، د شاتو مچې او سپي له دغه ډول ډلو څخه
دي . دوی د خپلو دندو د تر سره کولو له پاره يو ډول
طبيعي ادراک لري او سپي که د انسان سره واوسېږي نو د
هغه دغه شعور نور هم پر مختيا کوي . تاسو به ليدلي وي
چې که کله هغه په پټه کوم بد کار وکړي يا د خپل خاوند د
خوښې او حکم پر خلاف څه کړنه تر سره کړي نو تر هغه
وروسته هغه له دې امله يو ډول مضطرب او پرېشانه وي .
دا له لويه سره د وجدان اغېز دی چې د دغسې کيفيت لامل
ګرځي او که دا اغېز په هغه کې ډېر پر مختيا وکړي نو په
هغه کې به هم د انسان غوندي په څرګنده تر سترګو سي .
نو ځنګه چې انسان فطرتاً د ټولنيز ژوندانه لوري ته مايل
دی، د هغه تخليق او جوړښت هم داسې دی چې د هغه
تمايل د داسې عملونو پر لور وي چې له هغو څخه د هغه
ټولنه خوښه او راضي وي او له داسې اعمالو څخه کرکه
وکړي او مخالف يې وي کوم چې د ده د ټولني کرکه ځني
کيږي . دغه اغېز په يوه واړه ماشوم کې هم وي . که کله
پر هغه باندې د شرم آثار را مات سي نو همدغه اغېز د هغه
له سترګو څرګنديږي او د هغه اضطراب او پرېشاني موږ ته
دا راښيي چې له هغه څخه ارومرو کومه خطا سوې ده .

په انسان کې دغه اغېز د هغه د جسماني ودې سره سم
تر هغو وده او پراختيا مومي څو انسان هغې پولې ته ورسوي
چې هغه د خپلي فريضې تر عهده ووزي او له دې امله ډېره
خوښي او خوشحالي ور په برخه کړي او که له هغه څخه د
خپلي فريضې د اداينې خلاف کوم کار تر سره سي نو هغه
ته د پښېماني او تاسف تکليف ور په برخه کوي .

په انسان کې که څه هم دغه "شعور" طبيعي او فطري
دی او په جاهل او ناپوه انسان کې هم وي خو د انسان د نورو

د یرو ځواکونو او ملکاتو غوندي ''روزنه'' هم هغې ته د یره پراختیا وربخښي . لکه چي په وحشي انسان که دغه ''شعور'' هماغسي ساده وي لکه د هغه خبري اتري، پېژندنه او ټولنیز حالت . خو په متمدن وګړي کي دغه ''شعور'' تر دې اندازې په پرمختللي ډول مونده سي چي هغه د ولسي آزادۍ او خپلواکی په لار کي د سرښندني تر پولي چمتو کوي .

**د وجدان توپیر**

له پورتنیو کرښو ځخه په آساني دا مطلب پورته کیږي چي په بېلو بېلو اولسونو کي چي ''وجدان'' مونده سي په هغه کې ډېر ستر توپیر دی . ان چي د متمدنو او نامتمدنو ولسونو په وجدان کي هم لوی توپیر دی . له دې امله د دوی په منځ کي د خیر او شر او ښو او بدو په قدر و قېمت کي هم ښکاره توپیر تر ستر ګو کیږي چي د دې ټولو تر شا له آره (لویه سره) هماغه د وجدان توپیر یا اختلاف کار کوي .

پر همدې بنسټ په سرو ملکونو کي سستي او تنبلي د ګرمو ملکونو په پرتله د ډیري ښځوندی او ناخوښی باعث ګرځي . دغسي حال د رشتینولی، مېړانې، نیاو (عدالت) او نورو صفتونو او فضایلو هم دی .

له دې امله که څه هم ولسونه د دغو ځو فضایلو په فضایل ګڼلو کي په یوه خوله هم سي بیا هم نه په دوی کي یو ډول ترتیب رامنځته کېدلای سي او نه دا کېدای سي چي یو ولس چي کوم فضیلت ډېر مهم بولي هغه بل ولس دې هم هماغسي مهم وبولي . ځکه چي د وجدان اختلاف پر دې ټولو اروموو اغېز ښندي . نو کله چي کوم ولس د کوم فضیلت د ستر توب احساس وکړي نو ''وجدان'' د هغه رامنځته کولو ته لبیک ووایي او د هغه د ښېګڼي له پاره ډېر ځواکمن جوت سي .

دغه راز د مهال له بدلون ځخه هم په وجدان کي بدلون رامنځته کیږي، لکه چي که د کوم ولس وجدان د هغه د دوو، درو پېړیو مخکي وجدان سره پرتله سي نو د یوه ولس په دوارو وجدانونو کي به خورا لوی توپیر ولیده سي . وګورئ تر پېړیو پېړیو د ښځي سره ډېر ناوړه او له سپکاوي ډک چلند کېدی او د ډېرو ولسونو وجدان دغه چلند مناسب او غوره ګاڼه، خو اوسمهال د ټولو ولسونو په اند دغه کار په اتفاق سره ناوړه بلل کیږي او که کوم سړی دغسي چلند تر سره کړي نو ډېر ناسم یې بولي . بلکي تر دې لا هم سړی وړاندي تلای سي او ویلای سي چي هر څوک د مهال د بدلون سره سم په خپل وجدان کي هم بدلون مومي . ډېر وختونه کېدای سي چي یو سړی یو عمل ښه وبولي او تر سره کوي یې، خو چي د فکر او تأمل پړاوونه ووهي، نو د ده دغه وجدان هغه عمل بد ورته وایسوي . البته دغه کار برعکس هم کیږي .

موږ په دې زمان کي هم دغسي مثالونه وینو . د ساري په توګه څو کلونه دمخه د مصر خینو مشرانو د مسلمانانو او قبطیانو د اختلاف خلیج ته پراختیا ورکول خوښول او د دوی تر منځ اختلاف دونه زیات سوی و چي د دواړو ډلو مشرانو خپلي غونډي بېلي بېلي جوړي کړې او یو د بل په خلاف یې تجویزونه او مطالبې ترتیب او وړاندي کړې، چي له دوی ځخه هر یوه دغه چاري ډیري ښې بللې، خو موږ نن د دغو دواړو ډلو دغه ډلي پال مشران وینو چي د دوی د یووالي ستر بلونکي او د دواړو ډلو تر منځ د سولي کلک پلویان دي او د قبطیانو او مسلمانانو تر منځ بېلتون راوستلو ته د هري ډلي غړي ستر جرم او ډېر بد شرارت وایي . دا یوازي له دې امله دی چي د دوی په لید کي پراختیا رامنځته سوه او ویې لیدل چي دوی چي کوم شي خیر بولي هغه په حقیقت کي ډېر بد شی دی او اوس د دوی وجدان دوی له هغو ټولو هلو ځلو ځخه را ګرځوي چي دوی پخوا ښه بللې . د اروپایي ولسونو تر منځ وروستي جنګونه د نظر له پراختیا ځخه د دوی د وجدان د بې برخیتوب له امله وه . د هندوستان د بېلو بېلو ولسونو او د دوی د مشرانو جنګ جګړې (او اوس د نړۍ په ګوټ ګوټ کي جنګونه او مخالفتونه) هم د دغه نظر د پراختیا د نشتون له امله دي . البته کله چي د دوی د نظر او لید پراختیا دوی ته دا جوړه کړي چي د دوی دغه عملونه خیر نه بلکي شر دي، نو د دوی د نن وجدان به د دوی د پروني وجدان سره بیخي ډېر توپیر ولري .

**د وجدان تېروتنه**

کوم څه چي لوړ وویل سول له هغو ځخه په آساني دا نتیجه اخیستل کیږي چي وجدان کوم معصوم او سپېڅلي لارښود نه دی . له دې امله هغه کله کله د حق او واجب په لړ کي موږ ناسمي لاري ته هم برابروي او تېروزي هم او د داسي چارو د تر سره کولو حکم راته کوي چي حق یا واجب نه سي ورته ویل کېدای . دا له دې امله دی چي وجدان د هغه عمل حکم ورکوي کوم چي انساني ګروهه (اعتقاد) یې واجب او اړین یا حق وبولي، نو که چیري دغه اعتقاد غلط او فاسد وي نو د وجدان غلطي یقیني ده .

تاريخ موږ ته د داسي ډېرو هولناکو اعمالو پته راکوي چي د وجدان له مخي تر سره سوي دي .

په دې لړ کي يوه څرګنده بېلګه د هسپانيې د پلټني محکمه ده . د پاچا فرډينان او ملکې ازبلا په پېر کي يې داسي پلټونکي ټاکلي وه چي پر بکړه وکړي چي له عيسوي دين څخه کوم کوم وګړي ياغي سوي دي؟ دغو پلټونکو ته يې داسي يو سړی وړاندي کړ چي تور پر لګېدلی وچي د پاپ ديني رياست نه مني . خو کله چي هغو د پوښتني ګروېږني په مهال ځواب تر لاسه کړ چي هغه د پاپ له ديني کړۍ بهر نه دی وتلی نو هغو دا ځواب ونه مانه او دونه يې وزوراوه چي اړ سو په درواغو د دين پر خلاف څه ووايي . چي پر دې بنسټ د عدالت د محکمې پلټونکو پر هغه د ډېر سخت عذاب ورکولو او ژوندي سوځولو حکم وکړ . چي بيا د دې جابرانه حکم له مخي په يوه کال کي يوازي په "اشبيليه" کي دوه سوه اته تنه او په نورو ښارونو کي تر دوو زرو تنو زيات وګړي د همدې برخليک سره مخامخ سول . بالآخره د دغو پلټونکو د واک کچه تر دې پولي لوړه سوه چي ورو ورو يې د خلکو د پټو رازونو پلټلو ته لاس واچاوه، تر دې چي که به پر يو چا د بېديني تش تومت هم لګېدی سمدستي به جېل ته لېږل کېدی، چي دغسي ډېر بېوزلي به تر نامعلومو مودو بنديان وه او د هغو په هکله به يې کومه پرېکړه هم نه کول . عجبه يې لا دا چي کوم وګړي چي د پاپ د ديني رياست ډېر رشتياني او مخلص معتقدين هم وه، هم د دغو پلټونکو د بېديني او زندقې له توره نه وه ژغورلي . خبره دلته وه چي له تورلګوني څخه به چا دا پوښتنه نه کول چي پر تورن باندي په کوم دليل تور لګېدلی دی، د دې پايله دا سوه چي څو لکه وګړي د دې تورونو او د دې ستر ظلم ښکار او قرباني سول .

له دې سزا ورکوونکو څخه زياتره په دې يقين او عقيده وه چي دوی چي کوم کار کوي بيخي ښه او قطعاً پر حقه کار کوي او د دې اعمالو په تر سره کولو کي د خپل وجدان او ضمير اطاعت کوي .

خو د دې سره سره چي وجدان کله ناکله غلطي هم کوي زموږ دنده او فريضه دا ده چي موږ د وجدان اطاعت وکړو . (البته دا حکم په هغو چارو اړه لري چي خير او شر يې په منصوصو دلايلو ثابت نه وي او له عقل او وجدان پرته د هغو په هکله بل لارښود نه وي) . دا ځکه چي انسان د هغه عمل په تر سره کولو مأمور دی چي د هغه په اند حق وي او ده ته دا شونې (ممکنه) نه ده چي کومه خبره په رشتيا حقه وي هغه ومومي او په هغه عمل وکړي ، ځنګه چي دی يو څه حق ګڼي او د ده د ضمير او وجدان آواز دغه وي چي هغه حق دی، نو ضروري ده چي د هغه پيروي وکړي . دی په دې هکله بالکل معذور دی چي وروسته ده ته څرګنده سي چي هغه حق نه و بلکي مضر او باطل کار و . ځکه چي موږ ته "اخلاقي حکم" راښيي چي د کوم عمل پر خير او شر باندي د عمل کوونکي د غرض له مخي حکم کيږي، نه د هغه د پايلو له مخي .

لنډه دا چي کوم سړی چي د خپل ضمير د آواز پيروي کوي، هغه خير او ښه کار کوي، سره د دې چي وروسته څرګنده سي چي د ده له وجدانه تېروتنه سوې ده . خو بېله شبهې د عمل د تر سره کولو دمخه دا اړينه ده چي موږ د وجدان او ضمير په وړاندي د عقل په پراختيا، د رأيي په اصابت او سموالي او د اند او فکر په ځواک د لاري پړاوونه ښه روښانه کړو . دا ځکه چي "وجدان" د عقل د فرمان تابع دی او چي عقل کوم شی ښه نه ګڼي وجدان د هغه د کولو حکم کوي، نو که موږ خپل عقل ځواکمن کړو او چي د کوم شي په هکله حکم کوو له پراخ ليد او نظر څخه کار واخلو، نو يقيناً به وجدان زموږ سم لارښود جوت سي .

موږ ته دا اړينه ده چي موږ د خپل وجدان آواز واورو او د هغه امر ومنو او پلي يې کړو . که څه هم د نورو رأيه او وجدان د هغه مخالف هم وي او پر ځانو به د بيا پښېمانۍ او د نورو د ملامتيا بېره نه مسلطه کوو، ځکه پر موږ د هغه حق پيروي لازمه ده کوم چي موږ يې حق بولو، نه د هغه حق پيروي چي نور يې حق بولي .

**د وجدان روزنه**

د انسان د نورو ځواکونو او ملکاتو غوندي د وجدان په هکله هم ممکنه ده چي هغه ته په تربيه او روزنه وده ورکړه سي او د نه روزني له امله کېدای سي په هغه کي مړاوېتوب او کمزوري پيدا سي . بلکي د وجدان د مهمل او بېکاره پرېښولو يا تل د هغه د نافرماني کولو له امله نه دا چي په هغه کي يوازي ضعف راځي بلکي بيخي مري . لکه د يوه سړي چي د ساز اوربدل ډېر خوښ وي او بيا يې د ډېري مودې له پاره وانه وري، په دې صورت کي د هغه د ساز اوربدلو ذوق نه دا چي کمزوری کيږي، بلکي بيخي له منځه ځي .

په دې لړ کي د ډاروين په هکله يوه کيسه مشهوره سوې ده . د هغه وينا ده چي هغه په کوچنيوالي کي د شاعری سره مينه درلوده، خو هغه تر ډېري مودې شعر

ویل یا د هغه په هکله فکر کول گرد سره پر ښوول. نو د دې نتیجه دا سوه چې د هغه د ژوند په وروستي پېر کې د هغه د شاعرۍ میلان بیخي له منځه ولاړی او د هغه دا حس چې په شاعرۍ کې څه ښېگڼې دي گرد سره ورک سو.

دغه حال هم د "وجدان" دی. هغه تا ته د یوه عمل د تر سره کولو حکم کوي، خو چې ته د هغه نافرماني وکړې نو هغه سخت ځوریږي او چې دوهمه پلا د هغه مخالفت وکړې نو د لومړي ځل په نسبت لږ اذیت محسوسوي او چې بیا سړی پرله پسې په یوه بدي پسې بله بدي کوي او هغه ته دا احساس هیڅ نه وي پاته چې دا یو ناوړه او کږ کجن کار دی نو له دې امله د هغه د وجدان آواز کمزوری کیږي او تسلط یې ضعیفه کیږي او لکه څنگه چې وجدان له مهمل پر ښوولو یا له گناه تر سره کولو څخه. کمزوری کیږي دغسې د بدانو سره له ناستې ولاړې یا د خرابو فلمونو له ډېرو کتلو او خرابو کتابونو. مجلو او داسې نورو له اوږدې مطالعې څخه هم په هغه کې ضعف رامنځته کیږي او دغه دوې خبرې وجدان داسې بې حسه کوي لکه د بې حسۍ درمل چې جسم بېسده کوي.

البته "وجدان" له طاعت او نیکۍ څخه ژر روږل کیږي. ستر توب یې پیاوړی کیږي او په احساس کې یې لطافت راځي. له دې امله ښاري قوانین ښایي داسې جوړ سي چې د وجدان او ضمیر د ودې سره مرسته وکړي. ځکه ښاري قوانین که ښه او سم وي او احکام یې د وجدان د احکامو سره برابر وي نو "انسان" طاعت او نېکیو ته ډېر نژدې کیږي او د وجدان ځواک به یې ډېر پیاوړی وي.

له دې امله دی چې د ولسونو ستر ستر مصلحین تل خپل وجدان ځواکمن کوي او خپل احساس ته پرمختیا ور کوي او د کوم شي د اصلاح او سمون په لټه کې چې وي خلکو ته د هغه د ارزښت او ستر توب په هکله لارښوونه کوي. دغه راز څه چې هغه وایي یا یې لیکي د هغه سره سم خپل وجدان چمتو کوي او پر خوځښت یې راولي.

**د وجدان پوړی**

د وجدان درې پوړی دي:

لومړی پوړی: په خلکو کې له بیري څخه د فریضې د ادا کولو شعور دی. دغه "ډول" نژدې نژدې په هر انسان کې وي. ښایي هغه وحشي وي، مجرم وي یا ماشوم او په ځینو ځارویو کې هم هغه مونده سي.

دغه شعور ډېر وګړي د فریضې تر سره کولو ته چمتو کوي. که په هغو کې دغه شعور نه وای. نو له هغو څخه به هیڅکله د فریضې د ادا کولو هیله نه کېدلای. ډېر پوځیان د جگړې له ډگره له دې امله نه تښتي چې د هغو سره د خلکو د پېغور ور کولو او بد ویلو بېره وي او ډېر وګړي یوازې له دې امله رښتیا وایي چې د دوی سره دا بېره وي چې نه چې د درواغو ویلو په سبب په خپل چاپېریال او ټولنه کې په درواغجن نامتو او بې ارزښته نه سي.

خو د وجدان په دې ډول کې دوه عیبه دي، یو دا چې دغه ډول انسان که ونه بېریږي چې د خلکو د ده حرکاتو ته پام دی، نو سمدستي په رذایلو اخته کیږي. دوهم دا چې دغه ډول خلک چې کله په یوه ټیټ او وران چاپېریال کې ځان ووینې نو سمدستي په بدو چارو اخته کیږي او له دې امله نه بیا له چا څخه شرمیږي او نه د چا له بد ویلو بېریږي.

دوهمه پوړی: کوم "قوانین" چې د کومو امورو حکم کوي، د هغو د پټ او ښکاره پابندۍ شعور دی. ښایي دغه قوانین اخلاقي وي یا وضعي. (وضعي قوانین هغه دي چې د خدای ﷻ له لوري نه. بلکې د خلکو او حکومتونو لخوا رامنځته سوي وي). د وجدان دغه ډول تر لومړي ډول ډېر پرمختللی دی. ځکه چې په دې حالت کې د قوانینو څخه د سرغړونې له امله د سزا څخه د خوندي پاته کېدو سره سره د وجدان څښتن د قوانینو په وړاندې درناوی کوي او سر ورته ټیټوي. دی په هر څه کې له دیانته کار اخلي. امانت. سره د دې چې د هغه څښتن څه ثبوت او شاهد هم ونه لري بیرته ور سپاري. خپلې ژمنې تر سره کوي او له ژبې څخه یې داسې خبرې راوزي چې د سوې ژمنې د تر سره کولو تعلیم ور کوي او له بلې خوا "وضعي قوانین" د سوې معاملې تر سره کول اړین او ضروري بولي او دا سړی د دواړو قوانینو په وړاندې د درناوي او منلو سر ټیټوي. د "وجدان او ضمیر دغه ډول غوښتونکی" که څه هم د سزا او عذاب له خطره څخه گردسره بې غمه هم وي. هیڅکله څوک نه غولوي او که څه هم له درواغو څخه گټه هم ور رسیږي خو بیا هم هیڅکله درواغ نه وایي او که زده کوونکی وي نو د ازموینې پر مهال. هیڅکله خیانت ته بیخي ورنژدې کیږي هم نه. که څه هم استاد یا ازموین څاری (نگران) له هغه څخه غافل هم وي. ځکه چې ده په پټه او ښکاره دواړو حالتونو کې پر خپل ځان باندې د قوانینو پلې کېدل لازم گرځولي دي، که معامله د ده او د ده د نفس تر منځ وي یا د ده او نورو تر منځ ده ته دواړه حالته یو ډول دي.

دریمه پوړی : دغې پوړی ته د ولس له مصلحینو او لارښوونو پر ته نور څوک نه رسیږي . دغو شعور هغه پوړی ده چي په هغې کي د کوم امر پیروي یوازې د دې له پاره کیږي چي د دغسي وګړي نفس، هغه "حق" بولي . هغه له دې څخه ګردسره بې پروا وي چي د خلکو رأیه او د هغو متعارف قوانین د دغه امر او چارې مخالف دي. که موافق؟

د وجدان دغه ډول تر نورو ټولو ډولونو ډېر ځواکمن دی . دغه ډول د وجدان څښتن ته د هغه الهام د اطاعت حکم ورکوي، چي د هغه د رأیې په مټ هغه ته رسېدلی دی . "که څه هم په دې لاره کي د ډېرو سختو ستونزو سره مخامخ هم سي" . دی چي کومه خبره "حق" بولي د هغې په خلاف هیڅ بندیز نه مني او خپل نظر تر متعارفو قواعدو او قوانینو وړاندي بیایي او د لید له پراختیا څخه په کار اخیستلو سره یې د حق تر بنسټونو رسوي او چي حق ورته څرګند سي بیا نو د ډېرو غټو غټو وګړو له پروا پرته په هغه عمل کوي، بلکي که ټول قوم هم د هغه مخالفت وکړي، بیا هم د حق په وړاندي د هغو د یوې ذرې پروا نه کوي .

کله لا د دغې ډلې وګړي دغه حالت ته تر دې پوري رسیږي چي د "حق له مینې او پر هغه له زړه بایلنې" پرته د هغه په وړاندي نور څه نه پاته کیږي او د ده له یوې رشتینولۍ پر ته بل څه نه ویني او چي تر دې پوړۍ ور سیږي د حق د ملاتړ او ننګې په لار کي د ځان او شتو ټولو ښندنه ورته تر آسانه لاآسانه سي . په حقیقت کي دغه مرتبه پیغمبرانو علیهم الصلاه والسلام او تر دوی وروسته ډېرو سترو سترو مصلحتنو ته ځانګړې ده . دغه ستر وګړي د حق د سرلوړۍ له پاره نه د چا د ملامتیا پروا کوي او نه د چا د ایذا او ضرر سولو څخه ببر یږي . دوی په اتلولۍ سره پرله پسې د حق لوري ته بلنه ورکوي ان که مرګوني بریدونه هم پر کیږي پروا یې نه کوي او تل د خپلې عقیدې سره سم کړنه کوي . که څه هم په دې لار کي په ډېرو سختو عذابونو او ناوړو بوخلو او ناوړینونو اخته سي .

فرعون د حضرت موسی ؑ ملګرو ته وویل (آمنتم له قبل ان اذن لکم انه لکبیر کم الذی علمکم السحر فلاقطعن ایدیکم من خلاف و لاوصلبنکم فی جذوع النخل و لتعلمن اینا اشدعذاباً وابقی قالو الن نؤثر ک علی ماجآء نا من البینت والذی فطرنا فاقض مآانت قاض انما تقضی هذه الحیوه الدنیا انآامنا بربنا لیغفرلنا خطینا و مآاکرهتنا علیه من السحر والله خیر و ابقی) { طه : ۷۱ } .

ژباړه :

تاسي ایمان راوړ مخي له دې چي ما اجازه درکړې وي؟ نو ښکاره سوه چي دی ستاسي لارښود دی، کوم چي تاسي ته یې کوډګري درښوولې وه . ښه نو اوس به زه ستاسي لاسونه او پښې ګډې وډې کړم او د خرماوو په ونو کي به مو په دار وځړوم . بیا به تاسي ته څرګنده سي چي زموږ له دواړو څخه د چا عذاب ډېر سخت او پاینتي دی .

کوډګرو ځواب ورکړ : قسم په هغه ذات چي موږ یې پیدا کړي یو دا هیڅکله نه سي کېدای چي موږ د روښانو نښانو تر راتلو وروسته (تر رشتینولۍ) تا غوره وبولو . ستا چي څه خوښه وي هغه وکړه . ته خو یوازې او یوازې د دې دنیا د ژوند پر بکړه کولای سې . موږ خو پر خپل رب ایمان راوړی دی څو زموږ تېروتني راوبخښي او له دغې کوډګرۍ څخه چي تا ورته اړ کړي وو راتېر سي . لوی څښتن ډېر غوره او باقي پاته کېدونکی دی .

البته د دغو درو پوړیو له هري یوې څخه بلې ته د ترقی موقع هر مهال په لاس راتلای سي او په هره پوړی کي چي سړی وي، له هغې څخه بلې ته پرمختګ کېدونکی دی . بلکي د وجدان د روزنې تر اغېز لاندي سړی پوړی په پوړی پرله پسې پرمختګ کولای سي . خو د نبوت منصب د لوی څښتن ﷻ له عطا پرته نه سي تر لاسه کېدای، ځکه چي دا د الهی نیابت منصب دی او دا د هغه په عطا او پېرزوینه تر لاسه کیږي . نه د عمل او کردار په مټ . (او اوس خو دغه منصب د لوی څښتن ﷻ د وروستي پیغمبر حضرت محمد مصطفی ﷺ په رالېږلو سره نور ګردسره ختم سوی دی) .

## د وجدان ارزښت

په دې کي کوم شک نسته چي زموږ د دنیوي نېکمرغۍ او ژوندانه "مدار" د چارواکو او دندي لرونکو وګړو پر امانت داری او ښه او غوره کار ولاړ دی د مثال په ډول که د الوتکو، بېړیو، موټرانو او داسي نورو پیلوټان او چلوونکي په خپلو ورسپارل سوو دندو کي رسېدلي او تکړه نه وي نو ډېر وګړي به د مرګ سره مخامخ کړي . دغه راز درملګر (اطبا)، د هندسې پوهان او نور استادان او ډول ډول چارواکي همدغسي وبولئ . په دې کي هیڅکله دوې رایې نه سي ور کول کېدای، د قوم او ولس، بلکي د ټولو وګړو "سعادت او نېکمرغي" په دې کي ده چي د امن ماڼو او روغتیا ساتونکي په خپلو ورسپارل سوو دندو کي وړ او اهل وي . دغسي دي نور چارواکي هم خپلي دندي وبولي .

پاته په (۴۲) مخ کي

# د جهاني په وياړ شعرغونډې ته

د کندهار د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی د رئيس ښاغلي عبدالمجيد بابي د وينا متن

د لوی څښتن په ستر نامه :

د هيواد د شعر او شاعری په هسک کښي ځلېدونکې ستورې ، د شاعرانو مـنلې شاعره درونـد ورور جهاني صاحب !

د کنـدهار ولايـت د فرهنګـي جـرګې محـورو پوهـانو، پتمنو مشرانو، استادانو، ښاغلو ليکوالانو، شاعرانو، د قلم څښتنانو، د شعر او ادب مينه والو او د ښاروالی رياست د غونډو و همدې لويې خوني ته ټولو راغلو وروڼو !

په درناويو او زياتو سلامونو سره مو لمانځم، او ورسره جوخت د وياړلي او پياوړي شاعر ښاغلي عبدالباري جهاني په وياړ د شعر ويلو او اورېدلو همدې درنې غونډې ته ستاسو د راتګ له پاره د پښتني دود سره سم د ښه راغلاست، هر کله راسئ او سترې مه سئ پښتني کلمات يو ځل بيا تازه کوم .

خوښ يم چي په تېرو درو کلونو کښي د دريم ځل له پاره د اطلاعاتو او کلتور رياست دا لوی وياړ تر لاسه کوي چي د جهاني غونډي د يوه جهاني شاعر په سر واله ګډون سره يوه پراخه شعري غونډه رابولي، دا چي دا درنه غونډه د دوی د شاعرانه لوړ پنځ په ښکلو وړانګو سره نوراني او تر څنګ يې ستاسو پتمنو مشرانو، ځوانانو، ځلميانو او ژېکيانو په ځانګړې مينه سره هغه ته لا خوند او رنګ بخښل کيږي وړ ګڼم دوی او تاسو ټولو ته کور ودانی له دې امله وو ايم چي دوی د خپلي منلي ادبي ورهني د منلي پانګي يوه برخه ستاسو د ميني په ځواب کښي ستاسو په وړاندې په مينه مينه ايږدي او تاسو يې په خوښۍ سره ځيني منئ .

نن دلته ادبي ښکلا زيږي .

هغه غوړيږي او خپريږي .

نـن دلتـه د ادب مرغلـري پـه ادبـي ګـامونو د زړونـو د کورونـو پـر لـور ځانونـه رسـوي او زړونـه و زړونـو تـه غيـږي پرانيزي .

او بيا د زړونو ږغونه د سپېڅلو ولولو په بدرګه د زړونو پولي مچوي .

دا چي د دغسي لويو ښېګڼو تسلسل په لوی کندهار کښي د څو کلنو په اوږدو کښي د بېساري پسرلي د ښکلاوو سره تر همدې ګړيو ځان رارسوي دا نه يوازي موږ بلکي ټولو فرهنګـي سرېيو او کړيو او په وروستۍ محاسبه کښي ټوله کندهار ته د وياړ او سرلوړی خبره ده .

د همدغسي درنو ګړيو، همدغسي روښانه ورځو، شپو، اونيو، مياشتو او کلونو د پرله پسې ملګرتيا په هيله زه په دغسي غونډو کښي د منلي دود په ډول تر هغه ځايه چي توانېدلی يم د ښاغلي جهاني د ژوند ليک په اړه څو لنډي يادوني او څرګندوني کوم، که څه هم زموږ دغه نوموتی او پېژندل سوی شاعر د چا له لوري پېژندني ته اړتيا نه لري او ټول يې پېژني خو دغه څو کرښي د ځينو مشرانو او منلو استادانو د لارښووني پر بنسټ تاسو ته اوروم :

ښاغلي عبدالباري جهاني د نن څخه ۵۷ کاله دمخه په ۱۳۲۷ لمريز کال د کندهار ښار کابل دروازې ته نژدې د باميزو د کوڅې په ختيځه څنډه کښي د خپل سوداګر او شتمن پلار ارواښاد عبدالاحمد خان په کور کښي زېږېدلی دی . ښاغلي جهاني د پلار لومړی زوی او پلار يې د خلکو او دوستانو په منځ کښي د ښه نوم، پستې ګذارې او ښه چلند څښتن و .

د ښاغلي محمد معصوم هوتک په وينا جهاني لومړنی دوديزه زده کړې د ملا نورمحمد څخه تر لاسه کړي دي .

**کله چې د هغوی د ژوندانه ګړی د رسمي لیک لوست تر پولي رسېدلي نو يې په کندهار کښې میرویس نیکه لېسې ته مخه کړې او تر دوولسم ټولګي پورې يې هملته د لوست او زده کړې د پړاوونو یو ټاکلی پړاو بشپړ کړ .**
**وروسته يې د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کښې د تاریخ او جغرافیې په برخه کښې تر ۱۳۵۱ ل کال پورې لوړې زده کړې وکړې .**

ښاغلي جهاني د پوهنځي په ټوله موده کښې د شعر و لوري ته په پراخه کچه مخه وکړه. شعر يې ښه وپاله او د هغه روزني ته يې ټینګه ملا وتړل څو نن دا ویاړ لري چې په هیواد او د **هیواد څخه دباندې په فرهنګي او ادبي سریو او کړیو کښې د یوه وتلي او منلي شاعر په توګه ځلېدلی دی .**

**دا چې نن د هغوی شعر ښکلی ، منلی او د پختیا تر پولې رسېدلی دی دا د هغوی مینه ده چې د شعر سره يې د همغه مهاله چې لا زنکی ؤ پاللې او روزلې ده .**

کله چې په میرویس نکیه ښوونځي کښې په لوست بوخت ؤ د پښتو د نوموتو شاعرانو شعرونه د ده د فکر او ذکر مشغولا وه . په دغو مشغولاوو او بوختیاوو کښې جهاني د لوړ تخیل تر هغې کچې خان ورساوه چې له خانه يې جهان ته لاس وغځاوه. د ده ښکلي شعرونه د خپرونو ښکلا سوه او د ډیرو لوپانو ، مشرانو او خوانانو د پاملرنې . کتني او اورېدني وړ و ګرځېده او په دې توګه لا تر اوسه که د ځان ؤنور د جهان سو او کله چې بیا د دغه جهان و جهان ته د بل جهان څخه سره په رابهېدو سوه او زموږ جهان يې سره تبې و ګرځوله د ملیونونو پښتنو او افغانانو سره د دې جهان **جهاني هم کده وکړه د خپلو خلکو د کړاوونو او ستونزو څخه د ډکو او ترټلو ورخولیدو تر دې پولې وکړاوه چې ځان ځني هېر او خپل بېوزلي ولس ته يې په بېوزلۍ کښې داسې د تسل مرغلري راغونډې کړې چې د ورکو د (ورکي مېنې) په ورکو او اشلو پشلو پاڼو کښې د ورکو زړونو درناوي او سلامي زموږ دغه ورک وروړ هلته هم جهاني کړ . داسې جهاني چې اوس يې خپل او پردي ټول د یوه پاخه ، وتلي او منلي شاعر په توګه پېژني ، هغوی د شعر په نړۍ کښې د یوه نوښتګر او نومیالي شاعر څېره د ځان کړې . داسې شاعر چې د شعر منځپانګه او ورسره هنر او ښکلا يې هم ښاغلي او غښتلي ده چې د هیواد د اوسمهال د پښتو شعر برخه ورباندې ویاړي .**

**که رښتیني پرېکړه وسي دوی ته د دوی همدغو غښتلو او ښاغلو شعرونو د اوسنیو پښتو شاعرانو په شاعرانه یون کښې د ګوته په شمېر و مخکښانو تر څنګ د مخکښې لنګوټه ور پر سر کړېده او که دغه ټوله خبري په څولنډو** ټکو کې راونغاړو نو باید وویل سي : جهاني یو استعداد دی او شعرونه يې په پښتو ادب کښې د څرنګوالي ، ډول او ښې او هم د ښه او شعري موازینو په ګېڼه پسولل سوي ژبرمه ګڼلای سو .

د دوی په برخه کي دا پرېکړه نه زما ده او نه د هغه او دغه چا ده . دا پرېکړه د ولس پرېکړه ده ، دا د ادب پوهانو او لویانو پرېکړه ده او دا د شعر د خوښوونکو او مینانو پرېکړه ده او پر دغو ټولو باندي د منلو او مهر لګولو په توګه دا د هیواد د وتلي او منلي لیکوال ، څېړونکي ، ژبپوه ، شاعر او تاریخ لیکونکي ارواښاد علامه رشاد بابا پرېکړه ده .

چې دا پرېکړه د ټولو پرېکړو او د دوی په برخه کښې د ښو اندونو د څښتنانو د نظرونو د قبلوني له پاره ډېر ښه لاسوند ګڼلای سو .

هغوی فرمايي :

"ښاغلی عبدالباري جهاني ځوان پښتون شاعر دی ، زما په خیال ابتکار او سلاست د ده د شعر ځانګړ تیاوي دي . . .

د ده پر نغمو مستي ناخي ، او د ده ترانو ته شاپېري اتڼ اچوي . . . د جمال جلوې له ده څخه ځان او جهان هېروي . په دغه جذبه کي نه دی ځاني دی نه جهاني . د احتساب ېېره يې له زړه وتلې وي ، د مغانو پر دوکانونو په ډېره زړه ورتیا ګرځي ، په خورا بې احتیاطي د میخانو تړلي دروازې ورټکوي ، د حسن پر کعبو طوافونه کوي . د میني د بت پر پښو تندي موږي ، خکه نو زه دی یاغي شاعر بولم .

د ښاغلي جهاني د فکر شهباز د نوو معناوو په ښکار پسي ډیري هسکي الوتني کوي او بې ښکاره نه راستنیږي خکه نو زه دی مبتکر شاعر بولم . . .

دا ځوان شاعر زیار باسي د ګران وطن پر شمه باندي سرښندونکي پټهان د ستې کېدلو له پاره راوبولي . د ده شعر بې مبالغې د افغان ولس د ویښتیا له پاره هغه سوي چغي دي چي بړغ يې په اوربدلو کي د غوږ او په لوستلو کي د ستر ګوله لاري بخر کي پاشي . رنځېدلی او کړېدلی افغان ولس ملي وحدت ته هڅوي . د ده استعارې هغه تارونه او کنایې هغه ستني دي چي زړونه سره ګنډي . . .

د دې اسکېرلي ولس د سوځېدلي او لولیه هیواد په کربلا کي جهاني د حق پر شهیدانو ساندي وايي او کله د یزیدانو په لټون د ماغزو په غوړو مشالونه لګوي .

زه د ده د طبعي په سینا کي هغه روڼاوي وینم چي د ډیرو به د هغو دیدار نه وي په نصیب سوی . . . " .

درنو مشرانو او پتمنو ورونړو !

د ښاغلي جهاني په اړه به ډېر ، ډېر څه ووايي ، خو ډېر به د لوی ښوواند علامه رشاد بابا سره د دوی د همدغو لوړینو په برخه کښي همرغه وي . نو زه هم د ډیرو سره همغلاری کېږم او د جهاني په برخه کښي د علامه بابا همدا پېرزوني د خپلې لیکني له پاره بسندویه ګڼم .

داکتر طارق رشاد

# د استعاراتو تشبیهاتو کنایو او سمبولونو شاعر جهاني

د نازکخیاله، خوږژبي، د استعاراتو، تشبیهاتو، کنایو او سمبولونو د شاعر او لیکوال په اړه لیکل څه ستونځمن کار دی. هغه شاعر چې د مکنوناتو او تصوراتو انځور ګري کوي، د ښکلا ذوقي تنده ماتوي او شعري هنر یې ژوند داسي انځوروي چې د تل له پاره یې ژوندی ساتي او کله چې یې حساس زړه له ژونده اغېزمن سي، توري د خیال په مزي پېیي او د شعر جامې ور اغوندي او ژوند ته یې بیرته د ښکلا له پاره سوغاتوي. ځکه د ده شعر د ژوند او خوند شعر دی چې یوازي د نازکي تنستې او رنګ ښکلا نه لري، بلکي د باغیتوب تر څنګ د نوښت او ابتکار ښکلا هم لري. لکه دی چې خپله وایي

زموږ یې د خیال په تنسته کي دي اودلي ویني
ځکه مو اوښکو ته له سرو ستر ګو راغلي ویني

هغه شاعر چې خپله لومړی شعري ټولګه "ورکه مېنه" یې هغه شاعرانو ته اهداء کړې چې تقدیر محکوم پیدا کړي، واکمنانو یې پر خولو مهرونه وهلي او زمان یې قلمونه زولانه کړي. هغه شاعر چې خپله دوهمه شعري ټولګه د "پایکوب" په نامه "خپلي ښکلي کندهار، خپل مست کندهار او خپل نړېدلي کندهار ته چې د ده معشوق دی، د ده مسجد دی، د ده کور دی او د ده ګور دی" اهداء کړې ده او هم هغه شاعر چې خپله درېیمه شعري ټولګه یې "د سباوون په تمه" هغو پښتنو ته چې د ورک سباوون په تمه د تورتمونو په سار کي یوې تتي وړانګي ته منتظر دي اهداء کړې او هغه شاعر چې خپله څلرمه شعري ټولګه یې د "شپېلی" له ستوني راوتلې او هم هغه شاعر چې پنځمه شعري ټولګه یې د "کوه طور" په نامه چې د څه نا څه معنوي او فلسفي شاعرۍ له زمزمو او د هیبت له رڼغه ډکه ده په دې ورځو کي د چاپ له کومي راوزي، او هغه شاعر چې د عمر خیام د رندانه رباعیاتو پښتو شعري ژباړه یې د چاپ لاره څاري او هم هغه شاعر چې د هندي بکت کبیر د لوړو شعرونو شعري ژباړه یې د چاپ له ستوني راوزي او همدارنګه هغه لیکوال چې له لیري مېني څخه یې زموږ مېني ته "د مشکو کاروان" رالېږلی او هم د "تاریخي هرات، پښتانه او ستري لوبي" تاریخي اثر لیکوال. هغه جهاني چې د امریکا رڼغ د پښتو خیروني د ادبي برخي لیکوال او ویاند دی او داسي نور . . .

هغه شاعر چې زموږ د ټولني وتلي شاعر، لیکوال او نامتو سیاستپوه اروابناد عبدالرحمن پژواک د هغه په اړه لیکي "عبدالباري جهاني یو استعداد دی، چې که چیري زموږ د اسیر محیط د قید او بند څخه آزاد پاته سي خپل رازونه به د سپېڅلو پیامونو د شعرونو په څېر جهانیانو ته ورسوي، چې د نني بازاري شعارونو بازار به مات کړي".

زموږ ښه لیکوال، شاعر او سیاستپوه اروابناد سید شمس الدین مجروح د دوی په هکله لیکي "جهاني په خپلو سندرو د وطن په غم په زار زار ژړلي دي او هم یې په خپله تخیلي میخانه کي په کټ کټ خندلي د . د شعر په بحر کي یې د دریاب سفر کړی او د خیال په آسمان کي یې وزري خورې کړي دي . زه ویلای سم چې جهاني د شعر

**په قلمرو کي ځانته ښه مقام پيدا کړی او د شاعرانو په محفل کي يې ښه درنه کرسي نيولې ده" .**

**ارواښاد اکاډميسن علامه رشاد بابا دی ياغي شاعر بللی او داسي ليکي : "زما په خيال ابتکار او سلاست د ده د شعر ځانګړتياوي دي . د ښاغلي جهاني د شعرونو بل خصوصيت دا دی چي له رسومو څخه بغاوت کوي. د جمال جلوې له ده څخه ځان او جهان هېروي . په دغه جذبه نه دی ځاني دی نه جهاني . د احتساب ېږه يې له زړه وتلې ده. د مغانو پر دوکانو په ډېره زړه ورتيا ګرځي . په خورا بې احتياطي د ميخانو تړلي دروازې ورټکوي . د حسن پر کعبو طوافونه کوي د ميني د بت پر پښو تندي موږي. ځکه نو دی زه ياغي شاعر بولم . د ښاغلي جهاني د فکر شهباز د نويو معناوو په ښکار پسي ډېري هسکي الوتني کوي او بې ښکاره نه راستنيږي . ځکه نو زه دی مبتکر شاعر بولم" .**

ارواښاد کانديد اکاډميسن سرمحقق محمدصديق روهي "د پښتو ادبياتو په معاصره دوره " کي د ښاغلي جهاني د شعر په اړه داسي وايي : "د جهاني شعر د تخيل، عاطفې او طغيان څخه ترکيب سوی او د پښتو د هنري فرهنګ د ګالري يو زړه وړونکی تصوير دی" . او بل ځای ليکي : "جهاني د ويښتيا د دورې د نامتو شاعرانو او لومړيو سرغندويانو څخه دی چي د اوښتون په پړاو کي فعال او آثار يې په وروستني پړاو کي چاپ سول". او کانديد اکاډميسن ارواښاد محمدابراهيم عطايي په ۱۳۵۳ ل کال کي جهاني ته يو شعر وکيښ او د شعري ليک په توګه يې ور استولی دی، د دغه شعر يوه برخه داسي ده :

د جهان د جهانيانو جهاني ته
ولېږم سلام په مينه و ياري ته
ستا جهان دی يو جهان د خوشحاليو
د ښکلاوو د شرابو د مستيو
هنګامه د لېونتوب او لېونيو
د شرابو او نشوو او ځوانيو

او يا :

په شرابو بد مست سوی يو آبشار دی
يا يو کيف دی چي تاو سوی په زنار دی
ستا جهان کي هنګامه د خم پرته ده
د توپان او د موجونو ننداره ده
په شرابو د بدمست ياغي څېره ده
يا د مستو ګناهونو خاطره ده

دې جهان ته دي جهان تول حيران دی
پرستش ته په سجده يې زما جهان دی

پوهاند ډاکټر حبيب الله تږی د جهاني په هکله په ۱۹۸۸ ز کال کي داسي ليکي : "که شاعر (جهاني) له يوې خوا د ګل د نازکو پاڼو د پاسه د شبنم مرغلين څاڅکي هم نه دي هېر کړي، شاعر که له يوې خوا د زړو ميکدو له خمونو، ښايسته ساقي او سازونه، جامونه، خوږو يارانو او رندانه محفلونه په ياد ساړه اسويلي ايستلي دي، نو له بلې خوا يې د جګړې د ميدان د بمونو، ټانکونو او توپونو او وحشيانه استبداد او ظلمونو له لاسه تودې چيغې هم کړي دي" .

ښاغلی استاد حبيب الله رفيع د جهاني په اړه داسي ليکي : "د ده (جهاني) په شعر کي د مضمون او شکل بافت متناسب، سامعه نواز او رحنواز و او له همدې کبله په کم سن کي د شعر لوړ مقام ته ورسېد او د هيواد د ګوتو په شمېر شاعرانو کي وشمېرل سو . د جهاني له شاعرۍ سره د يوه يوه کس شاعري سيالي کولای سي، نو ځکه بايد په زغرده قضاوت وکړو چي د جهاني شعر په پښتو ادب کي د شکل او محتوی او د کيفيت او کميت له اړخه يو ښه او په زړه پوري زياتون دی" .

د پښتونخوا خوږژبی شاعر رحمت شاه سايل د جهاني په شعر کي ژوند او فن ويني او وايي : "جهاني په خپله شاعري کي د خپلي خاوري، خپل قام، خپل ولس د هر زخم او هر درد قصه په دومره موثره ژبه کي په دومره فني هنر او فني غيرت راځای کړي چي که په بيا بيا لوستو يې سړی نه مړيږي نو دغه درد او دغه غيرت هر ځل د سړي د اوښکو ټوپېدو او اوښکو ټينګېدو سبب هم کيږي" . د دوی د (تياره سباوون) پر شعر يو لنډ نقد ګوټی لري او دا هم وايي که جهاني د داسي لوړ مقام شاعر نه وای نو ما به دا کار هم نه وای کړی، سره له دې چي پر ريبار نيوکه لري خو دغه لاندي بندونه يې په فني ډول بې مثاله بللي دي

هغه دي پورته سوې لمبې د کلي
هغه دي وراني سوې کوڅې د جانان
په لاله زار کي خزان وغوړېده
د ګلو ښار ته راشېوه سول زاغان
شپه د سحر په غېږ کي وغوړېده
زړيني وړانګي رخصتونه غواړي

او هم ښاغلی رحمت شاه سايل د ښاغلي جهاني د دوهمې شعري ټولګې (پايکوب) په سريزه کي داسي

لیکلي: "د جهاني یو نظم، یو غزل، یوه سندره چې څا ووې نو که په کتاب لوستو کې ترې څه ځېز هم پاته سو نو زه یې ذمه وار یم".

پښتنو ته د غربي شعر د روح ور پېژندونکي او په شعر کي د ځینو خاصو رواني تمایلاتو پالونکي ښاغلي ډاکټر اسرار د ښاغلي جهاني د شعر په اړه داسي لیکي: "د جهاني د شعر د ښکلا راز د هغه د شعر په رواني. د جذباتو په ځېو او په سپېڅلي رنګینه ژبه جوړ سویو روماني تصویرونو کي دی". او هم د ښاغلي جهاني د آزاد شعر پلوی دی او دا هم وایي: "د جهاني په شعر کي خوند او اغېز، د جذبې صداقت، د تخیل لوړتیا، د ژبي رنګیني او اظهار ځانګړی انداز پیدا کړی دی".

ښاغلی قیصر اپرېدی ورته د الجهاد نماینده شاعر وایي او لیکي: "ښاغلی عبدالباري جهاني هم د انسان د داخلي او خارجي محسوساتو یو داسي نماینده قلمکار دی، څوک چې د بشرالمیو (غمونو) تفسیر او تفصیل د غزل په نازکو شوندو بیانوي او کله چې یې په غزل کي الجهاد ماده راټینګه سي نو د نظم خورا پراخه غېږ واخلي د آزاد نظم (آزاد شعر) په فضاګانو ور ګډ سي.

پرېشان داودزي د ښاغلي جهاني په هکله لیکلي: "عبدالباري جهاني هم په ننني پسته شاعرۍ کي او هم د خپل افغان فکر او نظر د سپېڅلتوب او د شعري فن د اسلوبو د انفرادیت پر اساس مستقبل کي د یادولو وړ سخنور دی".

مشتاق مجروح یوسفزي د ښاغلي جهاني د شاعرۍ په اړه وایي: "دومره ښه شاعر ما د افغانستان د شاعرانو نه و لیدلی".

محمد اقبال اقبال له مردان څخه د ښاغلي جهاني په اړه لیکي: "دومره مترنم الفاظ یې استعمال کړي دي څه ته چې شعري لفظونه وایي. جهاني پخپله حواله د ولس او د ولس په حواله د خپلي معاشرې خبري کوي. د سپرلیو په وږمو کي ورته د خپلي خوږې خاوري د لیلی وربښمیني زلفي یادیږي او د خزان په سپېرو بادونو کي ورته د خپل ولس وران ویجاړ کورونه او ریچې ریچې، پاره پاره زړونه.

ښاغلی شفق بیا وایي: "عبدالباري جهاني د اټوله شاعري خپلي خاوري، خپل هیواد او خپلي ټولني سره د شاعر د کلک تړون څرګندونه کوي. د ده شعرونه د احساس بخري دي. د ده جذبه د ضمیر پلوشې دي. جهاني یو ملي شاعر دی، د خپل روایاتو، تاریخ او ثقافت په رموزو رسېدلی او د خپل ولس په نفسیاتو ښه پوهېدلی شاعر".

اندېښ شمس القمر چې په نظر ورکولو کي ډېر محتاط دی داسي وایي: "دا خو ډېر ښه شاعر دی. ژبه، لفظونه، محاورې او تخیل یې شاعرانه دي، ما چې د افغانستان څومره شاعران لوستي دي جهاني د ټولو نه په بل رنګ دی. ښه رنګینه او غوره شاعري یې کړې ده".

درویش دراني له کوټې څخه چې د خپل سرشار استعداد او فلسفي خوږې شاعرۍ له امله په پښتونخوا کي د خوانو شاعرانو له پاره د مرجع حیثیت لري د جهاني د شاعرۍ په اړه لیکي: "د جهاني په شاعرۍ کي د وینو او زخمونو دا کوم عکس چې ښکاري د هغه وجه دا ده چې دی له ویني ویني او زخم زخم حالاتو سره مخامخ دی، کني په ځواني کي یې ډېر مست او له غورځنګونو ډک نظمونه لیکلي دي. د هغو وخت شاعري چې یې سړي ګوري نو دي تر هر څه زیات د مینې، مستۍ او ښکلا شاعر ښکاري. ښکلا او مستي اوس هم خوند ورکوي خو نن شاعري یې زیاته پخه، زیاته سنجیده، او زیاته ژوره ده. د ښکلا په حواله چې یې څه ویلي دي هغه عامي سرېږني خبرني نه دي. د جهاني د ښکلا د احساس وده خپل آخري حد ته رسېدلې ده. هغه ښکلا چې د ټولو ښکلاګانو سرچینه ده".

خو ښاغلی دراني د ښاغلي جهاني د نوي شعر (آزاد نظم) پلوی دی او دا هم لیکي چې: "په خوږه، پسته او شاعرانه ژبه لیکل کوي او له مصنوعي ژبي څخه ځان ژغوري".

زموږ ښه لیکوال او کره کتونکی او زما نژدې دوست ښاغلی زرین انځور په معاصره شاعرۍ کي د جهاني د شعر حلول داسي شمېري:

۱. د افغانستان د مقاومت شاعري.

۲. مستانه نافرماني.

الف - د سرکاري شاعرۍ په وړاندي.

ب - د یو شمېر عنعنوي چوکاټونو په وړاندي.

۳. د افغانستان د خپل منځي جګړو پر وخت له جګړې کرکه. له شعارو کرکه. یو ډول ژوره ناهیلي، ویر او ماتم. د انتقام او جګړې پر ځای خوان ته ځولی غوړول او له مرچله راکسته کول.

۴. د جهاني د شعر په شهرت او محبوبیت کي د موسیقۍ او په تېره بیا د هیواد د تومیالي هنرمند سندرغاړي ډاکټر صادق فطرت (ناشناس) ونډه.

د ښاغلي جهاني د شعر پر جوله او فورم داسي نظر ورکړی دی:

د جهاني پر شعر تر يو وخته د فورم، وزن او چوکاټ له پلوه داسي کليشه غالبه وه چي څلوريز ډوله نظم و او شعر يې "مونوټون" کاوه. خو وروسته يې په چوکاټو کي رنګارنګي راوسته، د نوي غزل او آزاد شعر پر لور يې هم په زړه پوري ګامونه واخيستل.

او د را وروسته شاعری په اړه يې بيا ليکلي:

۱. د شعري يون د پرمختګ ډېره غوره ننداره يې ګڼې چي د ښايست نوي نښې نښانې او نمونې زموږ مخې ته ږدي.

۲. د جولې او منځپانګې (فورم او مضمون) دواړو تنوع يې تر پخوا زيات ته څرګندوي.

۳. د نااميدی درد لا پکښې زور او غمګين ښيي.

۴. د هغه منظوم داستاني او حکايتي شعرونه لا زيات د پاملرنې وړ ګڼې او زياتوي چي جهاني د ولس د ژوند په ډېر غمګين پړاو کي ډېر پرتمين شعرونه زمزمه کړي دي.

اکاډميک شخصيت ډاکټر لطيف بهاند بيا د جهاني د شعر په اړه ليکي: "د هغه (جهاني) د شعر تل ته رسېدل، ژور تفکر غواړي او زياتوي چي شکلا، تفکر او ياغيتوب د هغه د شعر اصلي مضمون دی. تفکر د هغه د هنر ساه او ښکلا د هغه د شعر زړه دی، او وايي د هغه په روح کي د ناپېژندل سويو ښکلاوو د معنويت سرګردان روح پروت دی.

د هغه ټول تفکر او هنر د انسان د تقدير او سرنوشت سره تړلی دی، د هغه فن د زاهد ريا او تقدير انځوروي. د ژوند د ښکلاييزو اړخونو تصويرونه له تيارو او د زمان له دوړو راباسي، د طبيعت ښکلا انځوروي، هغه له ازله سره ډغري وهي.

که په هنر کي شاعر د ښکلا په مرسته انساني نړی ته تېرېدل غواړي نو جهاني دا کار په بې ساري نوښت سره کړی دی.

زموږ ښه ليکوال، څېړونکي او شاعر ښاغلي معصوم هوتک چي د ښاغلي جهاني همزولی او پېژند ګلوي يې هم د ده په وينا د دوی همزولې دی. جهاني اووه کاله مخکي يعني ۱۹۸۸ کال کي د پنځوسو کلو بللی دی (د زېږېدو کال يې ۱۳۲۷ ل چي اوس به د اووه پنځوسو کالووي).

د زېږېدو ځای يې د کندهار ښار د باميزو کوڅه ګڼلې او د يو خوش سليقه، بې آزاره او پرهېزګار سوداګر ارواښاد حاجي عبدالاحمد خان مشر زوی يې ښيي او دوی دواړو (ښاغلي جهاني او ښاغلي معصوم هوتک) د مرحوم ملا محمدانور اخوند څخه ديني زده کړي کړي او بيا يې د کندهار د ميرويس ليسې تر دولسم ټولګي پوري يو ځای درس لوستلی دی او په يو کال پوهنتون ته تللي (له څلورو کالو بريالی زده کړي د کابل پوهنتون د ادبياتو او بشري علومو له پوهنځي فارغ او بيا په پښتو ټولنه کي د علمي غړي په توګه مقرر سو). او ليکي چي: "عبدالباري د تعليم په دوران کي مستعد شاګرد و، په هماغه وخت کي يې له شعر سره مينه وه. شاعرانه ولولې يې درلودې. د محلي سندرغاړو محفلونو ته ورتلی، د کندهار د مشهورو شاعرانو شعرونه يې په ياد زده وه، حافظه يې دومره پياوړې وه چي محلي سندرغاړو به د ده په مخ کي هغه غزلي نه ويلې چي نورو ته به يې زده کېدل نه غوښتل. ځکه چي جهاني په يو وار اورېدو سره حافظې ته سپارلې. جهاني په کلاسيکه موسيقي کي ښه وارد و، له شوخ طبعې سره د ډېرو نازکو عواطفو څښتن و، د طبيعت په ښکلاوو کي يې له ماشومتوب لمر سره مينه درلوده. د ښاغلي جهاني استعداد د پوهنتون په دوره کي لا څرګند سو. قريحې يې داسي وده وکړه چي د لومړيو شعرونو په ليکلو او اورولو يې د پښتو ژبې د مشرانو شاعرانو او استادانو پاملرنه ځانته راواړوله. نور نو جهاني د پښتو مشاعرو فعال ګډونکونکی سو. ده به شعرونه ويل خو غونډول به يې نه. د دوستانو د ټينګار له امله جهاني د خپلو شعرونو خوندي کولو ته اقدام وکړ. د ده د شعر آزانګه بيا هله څو چنده سوه چي د هيواد مشهور او منلي هنرمند ښاغلي ناشناس په خپل ساحرانه آواز کي د نړيوالو غوږونو ته ورسوله. زما ښه په ياد دي چي د کابل راډيو ـ تلويزيون څخه د ښاغلي ناشناس په آواز د جهاني دا شعر چي:

په موج څپېزه هيبت راغلی د فلک سېـــلابي کړېږي
زموږ کښتي يې ډوبوله خپل درياب يې توپاني سو

د هوا څپو ته خپرېده، خلکو به د ده په شعر کي د خپل ژوند څپڅپانده کښتي او د دښمن توپاني درياب کاته چي نور يې تصور نه سي کېدای".

اوس که راسو د ښاغلي جهاني د مقيد او آزاد شعر پرتله کولو ته:

ډاکټر اسرار د جهاني د شعر په اړه داسي نظر لري چي: "آزاد شعر د جهاني د خيال د نيلي د زغاست خوښ ميدان دی. ځکه آزاد نظم (شعر) چي د قافيو، رديفونو او بحرونو په غير موجودگی کي د کومي خوږې رنگيني ژبي او په شاعرانه فضا کي د شعور د ږنو پلوشو، تخيل د لوړ تيا او د جذبي د ريښتينتوب غوښتنه کوي، جهاني د هغي خيال ساتلی". او ښاغلی درويش دراني هم همداسي نظر لري، خو ښاغلي معصوم هوتک د ښاغلي جهاني د شعر په هکله داسي نظر لري: "ده (جهاني) د شعر په ټولو اصنافو کي د تخيل زور اچولی دی، آزاد شعر يې ويلی دی، غزل هم، قصيدې او مثنوياني، خو که په شعر کي د مشورې ورکولو گنجايش وای ما به ورته د غزل ويلو مشوره ورکړې وای، د ده غزل په رنگينی رنگين او له شوره ډک دی، يو مزيت يې دا دی چي نه يې دومره پرله پسې کړی چي لوستونکي يې پوهېدلو ته ټپ ودرېږي او نه يې دومره ساده کړی دی چي لوستونکي يې پر شعر شکمن سي".

خو د پښتونخوا د معاصر و ادبياتو د دوهم پړاو سرلاري ارواښاد ايوب صابر خبره ده چي ويلي دي: "که ماته کالخوايي راکړه سي نو يوازي هغو شاعرانو ته به د آزاد نظم (آزاد شعر) ليکلو اجازه ورکړم چي لومړی په پابند نظم (مقفی شعر) کي ځان شاعر ثابت کړي". نو د ډاکټر اسرا او ښاغلي درويش دراني نظر هم د غور وړ دی، ځکه د ارواښاد صابر په وينا ښاغلي جهاني په پابند نظم (مقفی شعر) کي ځان ښه شاعر ثابت کړی دی او ښاغلی درويش دراني دا هم وايي: "دا مي يقين دی چي د دغسي شاعرانو (آزاد شعر ويونکو شاعرانو) فهرست که هر څومره لنډ وي د ښاغلي جهاني نوم په په کي ضرور شامل وي، ولي چي ده په پابند شعر کي ځان ښه شاعر ثابت کړی دی". د بېلگي په توگه يې د هغه مقفی شعر يوه برخه را اخلو چي زموږ خوږ ژبي شاعر ارواښاد اسحاق ننگيال ته يې ويلی دی:

ما ته ولي راکوې د مــــرگي زيري
ما ته ولي رالېږې زخــــمي نظمونه
په ما ولي اوروې دا سوي کــوکي
له ما ولي تښتوې اغزن خــوبونه
ما ته ولي يادوې سوځــــلي مېنه
مـــــا ته ولي يادوې د اب خونه
ما ته ولـــــي هديرې هديرې ژاړې
ما ته ولي راشمېرې ماشوم قبرونه

چي مردفه قافيه نه ده او د قافيې کلمې يې نظمونه، خوبونه، خونه او قبرونه دي، چي (و) يې روی(ن) يې وصل او (ه) يې خروج ده.

او يا د اوښکو شعر:

څه تودې تروې اوبه دي — د گرېوان په لـــور بهيږي
ابدي سکون ته درومي — له ژوندی سترگي بېليږي
له هر څاڅکي سره مله وي — د مرموز جهان ږغونه
پر آشنا لارو ور اخـــــلي — نابلده قدمونه
د کمزوري دنيا ژبه — د قدرت پښو کي وررولوېږي
د احساس بيده نغمه ده — په ښو ږغـــــول کيږي

او يا هم د پردي انگړ شعر:

ساقي نن مي په پياله کي جوهر نسته
په ترخو اوبو کي بوی د کـــوثر نسته
چي د شيخ د سر جـــندی يې نڅوله
برني تــــازه اورونه محــــشر نسته
چي توبه يې په طــواف کي ماتوله
د هغه انگاري څڅـــکي شرر نسته

چي مردفه قافيه ده او رديف يې (نسته) او د قافيې کلمې يې جوهر، کوثر، محشر او شرر دي چي (ه، ث، ش او ر) يکښي د قافيې د حرکت له پلوه توجه او گډه (ر) يې مجری (مجرا) ده.

او يا هم د ښاغلي جهاني د نوو شعرونو (آزادو نظمونو) يوه بېلگه د (سپين وېښته) په نامه په لاندي ډول ده:

کله مي زړه ته راسي راتيرې پخوانی خبري
سترگو ته راسي د خوانی خبري
د ژوند په تورو په تياره کونجونو
د اميدونو شمعي ولگېږي
د زمانې د اغزو دکي کوڅې
گلونه وسپړي لاله لاله سي
د پسرلي د نسيم
له جنتي، له زرغونو له ښايسته گوتونه
دانه دانه خلمی نغمې توييږي
او د ښو پر څوکو
راته ورېښمين زرين خيالونه نڅي
د آيينې مخي ته ودرېږم
پر خپلو سپين وېښتو لاس تېروم
ژبه کي زور د گرېدلو نه وي
پښو کي مي واک د نڅېدلو نه وي
سينه کي اور د مستېدلو نه وي

له دوو لېمو اوبنکي راوڅڅېږي

او د خيالونو ځولی ورغړوي.

د هغه په نوي شعر کي هم يو ډول شرنگ سته چي پر غوږو ډېر ښه لگيږي او نامانوس نه دي. سره له دې چي پور تنی شعر د مطلع شرنگ لږ نامانوس دی .

او هم ښاغلي جهاني د شعري ژباړي غاړه د ادبي مرغلرو په امېلونو پسوللې ده چي ژباړه يې توری په توری (تحت الفظي) نه بلکي شاعرانه او هنري ده او د هغه مضمون يې پخپله شاعرانه هنري ژبه اړولی دی. لکه :

د اېران د ښه شاعر د (تاک لور) د شاعر نادر نادرپور د شعري ژباړي يوه برخه :

(د غرب تر آسمان لاندي)

د خاطراتو له کوڅو څخه مي

ستا دگامونو آوازنه راځي

آه زما د ليري ولاتونو دوسته

لکه چي زما د پرديسی ښار ته دي لار کړې ده

آه زما د ليرو ولاتونو دوسته

دلته دکومي دروازې په څنگ کي

د کومي ونې شاته

د چا د يرغ په انتظار ولاړ يې

لکه چي زما د پرديسی ښار ته دي لار کړې ده

۞ ۞ ۞

د امريکا تر ټولو مشهور هنرمند (الويس پريسلي) د ويلي شعر د ژباړي يوه برخه (د زړه ماتو مهمانخانه) په نوم :

له هغي ورځي چي ته رانه جلا سوې

زه دي پرېښودم ښېلتون تورو تيارو ته

ما هم ځانته نوې مېنه پيدا کړې

هلته ليري په گوښه کي اوسېدو ته

په کوڅه د تنهايي کي يو گوښه ده

د زړه ماتو په نامه مهمانخانه ده

۞ ۞ ۞

او يا د سردار جعفري د شعر ژباړي يوه برخه :

(تنها که پښه)

په خواږه خوب د ونو سيوري ته ويده ملگرو

اې د زمان د حوادثو مېلمنو ملگرو

چي د وختونو چپ وونو مو هستی لوټلي

له کومه راغلاست چيري دورمئ لېونو ملگرو!

سب به بيا د ونو سيوري ته وي جمع ياران

د وخت ملگري د زمان کور کي مېلمه عزيزان

بيا پوښتو چي چيرته درومئ مېلمنو ملگرو

يه د اميد شمعي سوځلو لېونو ملگرو

۞ ۞ ۞

او له ولسي ادب څخه يې متلونو رااخيستي او د شعر خوږه ژبه يې ور کړې چي د بديع علم په معنوي صنايعو کي هغه ته ارسال المثل يا ارسال المثلين وايي خو په دې توپير که يو متل راغلی وي ارسال المثل او که دوه متله راغلي وي ارسال المثلين دی. لکه : "غل په غره کي نه خاتيږي" او "د غله پر ږيره خس دی" دوه متلونه په يوه شعري قطعه کي په لاندي ډول راوړي

غل له ډاره په لوی غره کي نه خاتيږي

نه ځنگلونه نه ښارونه ورته بس دي

د خاين له پاره خپل سيوری بلای دی

څه ښه وايي چي د غله پر ږيره خس دي

او دغه متل چي وايي : "توره ښه ده خو نه د ورور په وينو" د شعر په ژبه داسي انځوروي

توريالي بوډا زامنو ته ويله

توره سره ښه ده خو نه د ورور په وينو

که په کور کي او په گور کي عزت غواړئ

يو تر بل سره جوړېږئ زما زامنو

چي د سباوون په تمه شعري ټولگه کي يې (۲۰۷) متلونه په شعري ژبه اړولي دي .

د ښاغلي جهاني د نکلو او کيسو شعري ژبه هم ډېره خوږه. سليسه او روانه ده لکه د ملک بلو خان، دوه ماران، دارالمجانين، حيات آباد، د يونان له نکلونو څخه د ايکيرس او ډيډيلس، د ښامار افسانه، د ځنگل شاهي د نکلونو او کيسو شعرونه او داسي نورو کي د ښه او بد، پوه او ناپوه، ښکلي او بدرنگه او داسي نور متضاد سمبولونه راښيي او په پای کي يو پيغام او پايله له خانه سره لري لکه د "موږک ښېر" د شعر پايله چي وايي :

چي د بل په مېږ غټ سي يا زمری سي

په هغه گړي له دام څخه پردی سي

په داستاني شعرونو کي د ده سمبولونه د داستان د اجزاو په توگه نه بلکي د هغه محراق دي. خو په هر ډول د جهاني شعر زما له نظره له عاطفې، تخيل او طغيان څخه جوړ دی چي هم يې د هيواد او هيوادوالو په غم ژړلي او هم يې د ښکلو په بازار کي په کټ کټ خندلي. خو اوسنی شعر کي يې د ځوانی مستي لږ ده او له ساندو ډک دی ، شعر يې

د شرنگ (وزن)، تخیل (هنر) او فکر (مضمون) ښکلی امتزاج دی .  که موږ پر مرغلینو تورو د احساس څرګندونه شعر وګڼو او د شرنګ وینا ته شعر ووایو، نو ښاغلی جهاني بیا پر هغه داسي د خیال رنګونه پاشلي دي او داسي يې ښکلی کړی دی، که د تخیل په رموزوپوه څوک ورته کښېني او د هغه رنګیني ووینې نو دغه شعري انځور به د داسي انځورګر وګڼي چي په ساده تورو او رنګونو يې انځور ته داسي ښکلا ورکړې لکه د ښکلي ښتنې پېغلي څخه چي په ساده ګۍ کي ښایست اوري او هیڅوک به د پېچلتیا له امله هغه "سرچپه تابلو" ونه ګڼي .

د پېښو په ټاکنه او څرګندونه کي هم یوازي راوي نه وي، بلکي پیښي د فن او هنر په عملیه صیقلوي او ناتوړلي يې نه پرېږدي. متلونه او وراشې له موضوع سره سمي را اخلي  او د شعر په رنګینو يې رنګینوي چي ته به وايي، مرغلري له سپي راباسي .

خو کله چي حماسه په شعر کي ځایوي او مېړاني ستايي. نو هغه ته د شاهنامې رنګ ورکوي او د خوشحال بابا پر پله پل ایږدي .لکه :

خوب وينه  خوشحال  دی لړزوي په کټ کي زړونه
توري دي. لښکري دي. آسونه دي پوځونه
زغري په میدان کي د مغلو پرې سرونه

او کله چي د رحمان بابا درویشي خپلوي بیا وايي :

له رحمانه مي زده کړې قناعت د درویشانو
په بهار او په خزان کي مستقیم پر خپل مکان یم

د شعر د ښایست وړانګي يې د هغه خیال له آسمانه چي دی تل ورسره په جګړه کي دی زموږ زړونه او ذهنونه روښانوي او آسمان د جابر سمبول په ډول داسي راښيي :

منګول به مي آسمانه تر ګرېوانه در رسیږي
تنها کي په سکروتو اوبوم درته درځم

خو د جهاني  د شعر لویه ځانګړتیا د هغه د شعر هنري سمبولیک ترکیبونه دي په دې ډول :

په تندي کي تقدیر سوځول. د اوښکو ځنځیر تورول، بڅرو ته اور لټول، د خیالو په کوثر اوبېدل، په اواز کي زګېروي ځاله کول، شهباز خوله خوله کېدل، له لاسونو هنر کډه کول، له قلمه ښکلا کوچ کول، تصویر ژړل، پر ایینو لاسونه پېرول، د زخمونو تورول، د قلم ستوني کي وچ نظمونه لټول، په رګونو کي ساه وچېدل، د مستی پر نغمه زنګ پر بوتل، د خیالونو وزر رژېدل، په لاسونو کي سورونو ژړل، پر آواز مرګی مېلمه کېدل، ژوندي خیالونه بیدول، بې رنګه مستي تخنول، لېوني رباب ته شرنګ ورکول، اوښکو ته اتڼ ښوول، د مرګي په لاس کي چنګ ورکول، ساندي نڅول، اوښکي په سترګو کي زندۍ کول، د زاغانو  سیوري سوځل، ژړې پاڼې ژوندۍ کول، د ژوند سره ناټک کول، د ځوانی رژېدل او خزان غوړېدل، تقوا لمبه کېدل او توبه بیدېدل، د هوښ قالب ته د آدم د عدم خښتي لوېدل، په طواف کي توبه ماتول، د ځوانی بڼ د خزان په لاس لاښېدل، له آوازه مستي زېږول او داسي نور .

زما په فکر دغه نازکخیاله شاعر چي په تنکي احساس يې د لوړ خیال پر پېچومو فني ایجادات او د تخیل په پراخه ورشو کي يې د ښایست ښکار کړی وي کله چي زموږ پر مېني د پردي ښامار ساه وکښل سوه. کلي او باندې يې په سره اور وسوځلې، سرونه يې ورېېل. مېني يې ورکي او پر خمکه او آسمان يې د واکمنی دعوې پیل کړې. قلمونه يې زولانه کړل او پر خولو يې مهرونه ووهل. خو زموږ د جهاني یاغي روح يې ابل نه کړای سو. لکه خپله چي دی وايي :

زه شاعر یم د دې مېني زه سکوت ورماتومه
زه هاتف د ژوندی چیغي زه دا مړي وینومه

خکه يې د خولې قلفونه او د قلم زولنې ماتي کړې د شعر پخوانی مستي يې د قهرماني په مستي واوښته او د وخت تر فرعوني ستوني يې د زمان چیغه راووته او ويې ویل

**وایه ښین آسمانه !**

وایه ښین آسمانه ! تا کوم بل چیري لیدلي دي
داسي ارادې چي توپونو نه خپلولای سي
داسي ولسونه چي سېلونه اېلولای سي
داسي کلک سوکونه چي ټانکونه اوښولای سي
وایه ښین آسمانه ! تا کوم چیري اورېدلي دي
داسي حماسې چي افسانې باندي رنګیني سي
داسي کلکي عزم چي هسکي څوکي کوږي کړي
نکل د فرهاد چي ترخې شپې باندي شیریني کړي
وایه ښین آسمانه ! ته هم کله لړزېدلی يې؟
کله د چا ږغ له درانه خوبه پاڅولی يې؟
کله دي سېلونه په لمن کي یاغي سوي دي؟
کله د سرکښو تماشو ته کښېنستلی يې؟



او د دغه شنه آسمان په مخاطبولو سره د خپل خالي والوت او د ده دغه شعر د ولسونو د خوږمنو زړونو بړاس او دردېدلو زړونو خوږه نغمه سوه او وروسته له هغه نو د ده شعرونه نور هم په ټولو اصنافو کي پاخه سول او دغه پخه خبره چي وايي  "الاسماٌ تنزل من السماء" یعني نومونه له آسمانه راکښته کیږي او یا ایښودل کیږي نور نو جهاني، جهاني سو .

ستا د ښایست ګلونه ډېر دي
لمن مي تنګه زه يې څنګه ټولومه



عبدالقدیم پتیال

# د عبدالباري جهاني

## شعري ژباړې

پښتو ژبه چي لکه څنګه د ادب د نورو ژانرونو له پلوه خوارځواکې ده، همداسي د شعر په ډګر کي هم ډېره وروسته پاته ده، مطلب مي له ژباړي څخه دی. پښتو ژبه تر هر څه زیات ژباړي ته اړتیا لري او هغه د علامه رشاد بابا خبره پښتو لا تر اوسه د ژباړي له نعمته بې برخي ده. که څه هم د پښتو ژباړي تاریخ تقریباً یوولس سوو کالو ته رسیږي، خو بیا هم دغه بهیر ډېر تر شا پاته دی، د پښتو ژبي لومړنی او څرګنده ژباړه د ابومحمد هاشم سرواني ده چي تر دغي ژباړي وړاندي موږ د پښتو بله ژباړه نه لرو، ښايي وړاندي به نوري ژباړي هم سوي وي خو څرنګه چي تر موږ پوري نه دي رارسېدلي، نو څکه د ابو هاشم ژباړه موږ د پښتو په تاریخ کي لومړنی څرګنده ژباړه بللای سو.

ابو محمد هاشم د هلمند په سروان کي په کال ۲۲۳ هـ ق کي زېږېدلی او په ۲۹۷ هـ ق کي په بست کي وفات سوی دی.

ابومحمد هاشم د خپل استاد ابن خلاد یو عربي شعر په پښتو داسي ژباړلی دی:

ژبه هم ښه وینا کاندي چي یې وینه
د خاوند په لاس کي زر او درهمونه
ژبور ور لـــه ورځي وینا یې اوري
د درهم خاوندان تل وي په ویاړونه

په دې ډول نو پښتو ته د نورو آثارو د را ژباړلو لړۍ په لومړي ځل له شعره پیل سوې ده او پښتو ته د لومړي ځل له پاره شعر را ژباړل سوی دی، همدا ډول د ابو هاشم تر ژباړي وروسته موږ بله د پښتو داسي کره او پخه ژباړه نه لرو چي له هري خوا دي په ټول پوره وي او نه تر موږ پوري رارسېدلې ده، یا ښايي زما به نه وي تر سترګو سوې. خو سوونه کلونه وروسته موږ ته د زرغونې کاکړي د "بوستان" د پښتو ژباړي بولګه د پټي خزانې په برکت رارسیږي چي له بولګې څخه یې دا اټکل کولای سو چي ډېره پخه او په ټول پوره ژباړه ده.

زرغونې کاکړي د شیخ مصلح الدین سعدي بوستان نومی کتاب په پښتو نظم ژباړلی او نوم یې "بوستان د پښتو" پر ایښی دی او په کال ۹۰۳ هـ ق کي یې بشپړ کړی دی، د دغه کتاب یوه نمونه د پټي خزانې لیکوال په خپله ادبي تذکره کي راوړې ده چي څو بیتونه یې داسي دي:

اورېـدلي مـــي قصه ده
چي له شاتو هم خوږه ده
د اخـــتر په ورځ ســـهار
بایـــزید چي و رویـــدار
لـه حـــمامه را وتـــلی
پـــه کوڅه کي تېرېدلی
ایـرې خاوري چا له بامه
راچـپه کـــړلې ناپـامه
مـخ او ســر یې سو ککړ
په ایـرو په خـــاورو خړ

همدا ډول تر دغې ژباړې وروسته د اخوند درويزه ننګرهاري (۱۰۴۸ هق مړ) او د ده د پيروانو منظومي ژباړي په پښتو ادب کي خورا ارزښت لري چي د قصيدهٔ امالي پښتو ژباړه، د قصيدهٔ برده پښتو ژباړه، خلاصه کيداني او داسي نوري پښتو باړي دي .

د پير روښان او د هغه پيروانو هم لږ څه پښتو منظومي ژباړي کړي دي. همدا ډول حضرت خوشحال خټک او د ده کورنۍ او پيروانو هم ځيني پښتو ژباړي کړي دي. خو که په عمومي ډول وواېو نو پښتو ژبه له منظومي ژباړي څخه ډېره نېستمنه ده. موږ که د پښتو ادب لرغونې دوره، منځنۍ دوره او اوسنۍ دوره مطالعه کړو نو ښايي چي ډېر لږ منظومي ژباړي پکښي پيدا کړو، که څه هم د پښتو لومړنۍ څرګنده ژباړه له نظم څخه را پيليږي. مګر زما خبره به دا معنا نه لري چي په پښتو کي منظومي ژباړي نه دي سوي، يوازي که د قرآن کريم د پښتو تفسير منظومه ژباړه وګورو، نو ښايي د کميت په لحاظ موږ ډېره پښتو منظومه ژباړه ولرو. همدا ډول په ديارلسمه هجري پېړۍ کي هم ډېري پښتو منظومي ژباړي وسوې چي په هغه کي داستاني او ديني موضوعات ډېر ول، مګر د کيفيت په لحاظ هنري ژباړي نه وې (البته ټولي يې) .

په معاصره دوره کي د تخليقي ادب په برخه کي پښتو ته څه ناڅه شيان را ژباړل سوي دي خو د نظم برخه يې بيخي نه تر سترګو کيږي . ځيني نظمونه او شعرونه د ګوتو په شمار پښتو ته را وژباړل سول. خو هغه ځيني د انتخاب له ستونزي سره مخ ول او ځيني د ژباړونکو له نه مهارت سره په دې مانا چي په اوسنۍ دوره کي ځيني خارجي اشعار پښتو ته د ځينو کسانو له خوا را وژباړل سول. خو زما په فکر تر ژباړي يې نه ژباړه ښه وه (البته د ځينو دا) . ځکه چي يا خو په خپله په خارجي شعرونو کي سمه ټاکنه نه وه سوې او يا که به ټاکنه سوې وه هغه بيا په پوره کمال سره نه وه ترجمه سوې. د سپېدې په نوم خارجي اشعار چي د ښاغلي مفتاح الدين ساپي له خوا نړيوال اشعار ورته ويل سوي دي، په داسي ډول را ژباړل سوي دي چي نه يې د هغه اصلي شعر روح پکښي څرګنديږي او نه د خپلي ژبي رنګ ورکول سوی دی. د خيام څلوريځي د څلاند صاحب له خوا ژباړل سوي خو که يې څوک مطالعه کړي، زما په فکر وبه وايي چي دا چي اصلاً نه واى ژباړل سوي ښه به واى. د ماخيګر چارسو په نوم مقيد او آزاد نظمونه د ښاغلي اياز له خوا ژباړل سوي او لاندي ورته ليکل سوي دي چي نړيوال اشعار. خو زما په فکر په ټاکنه او انتخاب کي سم فکر نه دی ورته سوی او پر هغه سربېره سم ژباړل سوي هم نه دي. البته د پښتو ادب په معاصره دوره کي ارواښاد استاد بېنوا ځيني منظومي ژباړي کړي دي. همدا راز ښاغلي محمدصديق پسرلي هم کړي دي چي يادونه يې ضروري ده .

خو که وواېو نو په دغو منظومو ژباړو کي ښاغلي عبدالباري جهاني تر ټولو ډېر زيار ايستلی دی او تر ټولو يې په پوره هنر او کمال سره بهرني اشعار پښتو ته راژباړلي دي، نو فکر نه کوم چي له مبالغې څخه به مو کار اخيستی وي .

ښاغلی جهاني هم د شعر په انتخاب کي له احتياطه کار اخيستی دی او هم يې په ژباړه کي له پوره کمال او هنر څخه .

ښاغلی عبدالباري جهاني هنرمن دی او يو شاعر دی او ژباړه به يې هم خامخا شاعرانه او په ټول پوره وي او د شعر انتخاب به يې هم حتماً شعر وي، نه په نامه شعر . تاسو د دوی شعري ژباړي وګورئ او دا به درته څرګنده سي چي له دغو دواړو شيانو څخه په ډېر ښه ډول کار اخيستل سوی دی .

ښاغلی جهاني لومړی سړی دی چي پښتو ته يې په لومړي ځل خارجي اشعار په روانه او شاعرانه ژبه را ژباړلي دي، د کيفيت په لحاظ هم د کميت په لحاظ هم. تاسو که د دوی ژباړي وګورئ نو فکر به ونه کړئ چي دا دي ژباړه وي. زه خپله ښاغلی جهاني په اوسنۍ دوره کي د نظم په برخه کي تر ټولو ښه او لومړی ژباړن او شاعر بولم چي پښتو ته يې له خارجي ادب څخه ډېر څه راوړي دي .

ښاغلی جهاني په انګريزي ژبه کي پوره برلاسی لري او ډېر انګريزي اشعار (البته غوره اشعار) يې پښتو ته راژباړلي دي، پسرلی سږ کال وځنډېدی، فينسي څه مخته دي ښه سه، پېمان، طلاق، د زړه ماتو مهمانخانه، د ښځي ياغي چيغه، رښتونې مينه، زما لار، بېګانه په نيمه شپه کي، امريکا دي آباده وي، د بنګلو نجلی او د سحر وږمې هغه انګريزي شعرونه دي چي ښاغلي جهاني په ډېر شاعرانه انداز پښتو کړي دي او ډېر پښتانه يې په لومړي ځل له خارجي اشعارو سره داسي بلد کړي دي لکه د خپلي ژبي شعر چي لولي .

د شعر ژباړل لومړی په هغه ژبه ښه پوهیدنه غواړي بیا یوه ډېر ښه هنرمن ته اړتیا لري او بیا یو ښه ذوق غواړي او دا درې سره ځانګړني په ښاغلي جهاني صاحب کې را یو ځای سوي دي، ځکه نو په نتیجه کې پښتو ادب له بهرني اشعارو ځخه برخمن سوی دی .

تاسو د ښاغلي جهاني د (پسرلی سر کال وځنډېدی) د شعر د ژباړي دغه لنده بولګه وګورئ :

د اورګـــادي د پـــتلی ســــرد ولاړ یم
تېروم د انتـــظار ترخه وخـــــــتونه
وایم ګـــــوندي که تاتوبی مي بدل سي
نو ســـــینه کـــي به آرام وکړي دردونه
مـــــا دا تـــوله سره شپه کړه دلته روڼه
نـــــځېدل مـــــي راته مخي ته خیالونه
پکښي خیال به راته ستا د بېلتون راغی
تصـــور به مـــــي ژوندي کړل مړه زخمونه
(د سباوون په تمه ۲۵۷ مخ)

دا یو انګرېزي نظم دی، چي ښاغلي جهاني داسي راژباړلی چي څوک هیڅ تصور نه سي کولای چي ژباړه ده، په منظوم او مقید ډول د شعر ژباړل به زما په خیال لږ نوکی ګرانه خبره وي مګر څینو کسانو پښتوته په منظوم شکل ځیني شعرونه را ژباړلي دي، خو بیخي ډېر یې په دغه کار کي پاته راغلي دي، زه یوازي ښاغلي جهاني تر ټولو بریالی او سرلاری بولم چي په ډېر شاعرانه ډول یې منظومي ژباړي کړي دي .

دغه راز ښاغلي عبدالباري جهاني ځیني اشعار له اردو څخه را ژباړلي چي هغه یې هم کټ مټ هغسي ترجمه کړي لکه له انګرېزي څخه چي یې ژباړلي دي . د مشهور پاکستاني شاعر فیض احمد فیض (چي زما درد لره ژبه پیدا سي) په نوم نظم یې تاسو وګورئ :

زمـــــا درد یو بـــي آوازه شـــان نغمه ده
زمـــــا ذات یوه بـــــي نومه شان ذره ده
چي زمـــــا درد ته کله ژبه ور پیدا ســــي
نو به خـــــپل نوم او نښان را برمـلا سي
چي هستي مي د خپل ذات راته مفهوم سي
راز د نظم د جـــــهان راته مـــــعلوم سي
چي خـــــبر ســـم د دې پټ پوښلي رازه
ســــم بادار د کاییناتو د ملــــکونو
پــاچاهـــــي کوم د دواړو جــــــهانونو
(پایکوب، ۱۳۸ مخ)

ما دغه شعر په اردو کي نه دی لیدلی او که یې و هم وینم په اردو نه پوهېږم. خو زه فکر کوم چي دا شعر به په خپله په اردو کي هم تر دغه زیات خوند نه کوي او دا ښاغلي جهاني په ډېر شاعرانه او ماهرانه انداز سره راترجمه کړی دی . کله کله ځیني کسان د ژباړي په وخت کي دونه د هغې ژبي تر اغېز لاندي راسي چي هغه ځیني ترکیبونه، جملې او کلمات یې بالکل په خپله ژبه کي خلکو ته نااشنا وي او په اصطلاح یوه پردی ژباړه رامنځته کړي، خو ښاغلي عبدالباري جهاني دغه ټول شیان په نظر کي نیولي دي او یوه بریالۍ هڅه یې کړې ده چي پر ژباړه یې د پردیو ژبو اغېز نه وي .

د (غرب تر آسمان لاندي) د نادر نادرپور شعر چي په غالب ګومان له فارسي څخه به ترجمه سوی وي، د آزاد شعر په فورم کي ښاغلي جهاني په دې ډول ژباړلی دی :

د خاطراتو له کوڅو څخه مي
ستا د ګامونو آوازونه راځي
آه زما د لیري ولاتونو دوسته
لکه چي زما د پردېسۍ ښار ته دي لار کړې ده
دلته زما زړه کي د سهار مرغکۍ
د دې شریر جهان فضا کي راته
د وزرو د خلاصولو آرزو وپاروي
خو چي د شپې تیاره وزر خپروي
بیا دېوالونه زما د پټ زندان خبري کوي ... (ترپایه)

په دې ډول نو موږ ښاغلی عبدالباري جهاني د پښتو ادب په معاصره دوره کي هغه لومړنی شاعر بولو چي په ډېر ځیراکت سره یې هم له انګرېزي، هم له اردو او هم له فارسي څخه په آزاد او مقفي ډول ډېر اشعار پښتو ته په شاعرانه ډول را ژباړلي دي او د پښتو ادب د شعري ژباړي تشه لمن یې په خپلو بریالیو ژباړو سره څه ناڅه ور ډکه کړې ده .

د خیام فارسي څلوریځي په پښتو کي د ډېرو کسانو له خوا ژباړل سوي دي خو له بده مرغه هغه شاعرانه ترکیبات، هغه سمبولونه، هغه ځانګړي کلمات چي خیام کارولي، په پښتو کي هغسي ونه ژباړل سول . ابوالخیر خلاند د خیام د ژباړو ځانګړنی کتاب خپور کړی دی، خو زه انتقاد پر کوم چي سمه ژباړه نه سو ورته ویلای، نه د خیام شاعرانه اروا پکښې ده او نه په هغه ډول ژباړل سوي دي لکه په خپله ژبه کي چي څونه خوند کوي، خو له نېکه مرغه په دغه هڅه کي بیا هم ښاغلی عبدالباري جهاني تر

ټولو وړاندې سوى دى او د خيام خلوريځي يې په دونه شاعرانه انداز ترجمه کړي دي چي فکر کوم فارسي ژبو ته به هم خپله د خيام فارسي خلوريځي لا تر دې اضافه خوند ور نه کړي .

ښاغلي محمدصديق پسرلي ويلي وه چي د خيام خلوريځي ما هم ژباړلي دي او نورو ډيرو کسانو هم. خو د ښاغلي جهاني ژباړه تر ټولو ښه خوند کوي .

زه ځکه نور ډير څه نه سم ويلاى چي دا خلوريځي لا په کتابي بڼه تر موږ پوري نه دي رارسېدلي او يوازي مو د راډيو له لاري اورېدلي دي خو ښايي دا کتاب ډير ژر چاپ سي او درانه ورونه نور ډير څه پر ووايي .

د ښاغلي عبدالباري جهاني يو بل مستقل اثر چي ټولي ژباړي دي. هم ښايي په دې نږدو وختونو کي له چاپه راووزي او دا به پر پښتو ادب يوه لويه اضافه وي .

په لنډ ډول که ووايم نو ښاغلى جهاني په پښتو کي د شعري ژباړي پر ډګر هغه بريالى شاعر دى چي پښتو خوار کی ته يې يو ډير ښه غنيمت ګڼلاى سو .

۞۞۞

## علامه حبيبي په پښتو کي د ادبي . . .

مګر د عارف سترګي د رڼې هنداري په دود هر څه په خپل زړه کي تصوير کوي او داسي حساسي وي. چي په هر شي کي جمالويني او په شاعرانه تعبير يې هر شى د ښکلا ځري وي. دى دغه لاهوتي او سماوي جمال ته چي بل هيڅ جمال ته ورته نه دى خير کيږي. خو دلته هغه پخپله نوع کي واحد وي او بل مثال او څېر نه لري :

جمالک لا يقاس الی جمال
و قدرک جل عن درک المثال

دلته نو د ده سترګي داسي جمال سنجي سي، چي بالآخره هيڅ شى بد نه ويني او وايي :

از بشکه دو ديده در خيالت دارم
در هر چه نگه کنم تو يى پندارم

شيخ متي هم د عشق شپېلکی له غرو څخه اروي، هر شی که ووړ وي که غټ د ده په نظر کي د جمال ځري دى. د نړۍ سمي په مينه کي ګڼي او په دغو ننداره کي داسي د کلماتو او وينا ښکلا پيدا کوي :

په غرو کي ستا د عشق شپېلکی دی
د دې نړۍ په عشق سمي دی

که غټ، که ووړ که پسه نرۍ دی
ستا د جمال ځري هر شی دی
چي پر دنيا مي سترګي پرېږي سوې
ستا د جمال په ننداره سوې

(آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه. د لوى استاد علامه حبيبي ... ۷۰ _ ۷۱ مخونه)" .

د دغي يوې ليکني له مخي څخه موږ په ډير ښه ډول د لوى استاد علامه حبيبي ... د تېز ذهن او پراخي او کوټلي مطالعې څرک معلومولاى سو او دا په ډاډه زړه ويلاى سو چي په پښتو کي تر لوى استاد علامه حبيبي ... وړاندي هيڅ يوه ليکوال پر دغه راز موضوعاتو د دغونه علمي او پخو دلايلو په درلودلو سره کار نه و کړى او دا ويلاى سو چي لوى استاد په حقه سره لکه څنګه چي د ادب د ځينو نورو ډګرونو بنسټ ايښوونکى و، د ادبي تحليلونو بنسټ ايښوونکى هم و او زما په فکر په دغه پرېکړه کي به زما سره درانه پوهان موافق وي. خو دا چي د لوى استاد علامه حبيبي ... دغه راز تحليلونه ډيري څېړني ته اړتيا لري، دا نو بيا د درنو پوهانو کار دى. نه زما ناپوه او کمزوري سړي . د لوى استاد اروا دي ښاده وي او رب دي يې هر هله په جنت کي واچوي .

۞۞۞

## ضمير يا وجدان . . .

خو سوال په دې کی دی چي د دغو ټولو دنده والو په چارو کي دوى ته د دغو مسئوليتونو احساس کوم شي ورپيدا کوي؟ په يقين سره د دې پوښتني يو ځواب دى او هغه دا دى چي د فريضې ادا کولو ته د ټولو وګړو چمتو کوونکى او د هغو د وړ او ښه کار په هکله د هغو مسئولينتونو ته متوجه کوونکى همدغه وجدان او بيا يوازي وجدان دى. کوم چي د دوى په ختيه او د زړونو په تلونو کي اخښلى دى .

دغه وجدان دى چي د انسانانو په عملونو کي تر دې کچي د لطافت او باريک بينۍ غوښتونکى دى چي هغه د ثواب سره د مينې او له عذاب څخه د بيري له امله نه. بلکي يوازي يې له دې امله تر سره کوي چي دا عملونه "خير" دي او د هغو په سرته رسولو سره د غاړي د فريضې ادا ينه کيږي . نو کوم ملت چي خپل وجدان او ضمير وژلى وي، سعادت او نېکمرغي به يې پوپناه سي او ژوند به يې وران ويجاړ سي .

# مرغلرې

خوښونه
اداره

گل محمد د ملګیر

## غزل

نسته څوک چې ستا له لاسه بندي داد کړم
ستا له لاسه به پر تا باندې فریاد کړم
مخ دې لخ و ځېر په ځېر مې ننداره کړه
باد په تورو زلفو پټ زه یې نامراد کړم
نارضا له ما پر څه یې راته وایه
ستا له پاره به په خان هغه هیداد کړي
نام و ننګ که مې مانع ستا د وصال دی
ستا په عشق سره به ننګ و نام برباد کړم
په زارۍ اشنا وفا نه کړې ای خدایه
ته علاج یې اوس په نوی کار بنیاد کړم
ما په سل کرته یاد کړې ته رانغلې
زه به سل کرته درسم که ته یاد کړم
چې تر خان رابندي ګران پردي زامن سوه
څه به مینه پر آل پر خپل اولاد کړم

صدیق اخوندزاده

## غزل

خپل ساقي راته نیولي ډک جامونه دي
بېلتانه پر ملک پاشلي سره اورونه دي
سپینه خونه دي کټوري دي د شرابو
سپینکي غاښ دي مرواري لب دي لالونه دي
چې د ښو طوطیانو سیل راغی له هنده
زه طوطي د بل ولات مات مې بالونه دي
د خپل سیل څخه جلا سوم هوائي سوم
راځځه پاته د همزولو مجلسونه دي
بې پرهار مې ملهم مه ایږده طبیبه
چې پر زړه پرهار مې بې سبا وارونه دي
ستا پر دوو سترګو مین **صدیق** دی نه مرې
چې پر زړه یې د اشنا د لاس داغونه دي

ملا حسن ساګزی

## غزل

هغه چارې چې زما په خاطر اوري
شیخ یې نه ویني په خوب ملا یې توري
ما ویل زه به لیدن کړم د یارانو
زه چې راغلم یاران نسته مېښې توري
سپینې پښې مې د ربط په متو وسوې
خپل اشنای په تش نظر نه راته ګوري
چې چندن لره ورځي خپل سر به بېلي
د ایي مارانو ځای د چندن سیوري
د چندنو ونې وسولېدې ولاړې
د ښاخونه یې کاږه د حق پر لوري
د حسن زرګي هغو معشوقو یوړ
چې مدام تر نقاب لاندې ورته ګوري
د **حسن** برخه دغه سوه له ازله
چې همېش د ښایسته وو مخ ته ګوري

مهردل خان مشرقي

## غزل

پلو واخله له سپوږمۍ مخه مېرمنې
ستا بې مخه راته تپې دي ورځې سپینې
ستا له وره تللای نسوای هورې دورې
درته ناست یم په دربار پرې مې دي سپینې
درست بدن مې د بېلتون په اور کې وریت سو
په کوګل کې مې ویلېږي توري سپینې
راته وګوره رقیب سپک په څه شان کړم
خدای دې سپک کړي ستا په مخ ودې وزې سپینې
زه بېلتون سره نه وېرېږم له رقیبه
ورته وبه کړمه بیا ښې سپینې سپینې
مشرقي دې به ستا ره د بېلتون زارۍ
ورته نمر د مخ ښکاره کړه په مخ سپینې

پیرمحمد کاکړ

## غزل

ما له یاره سپینه خوله په خندا غوښته
دا له نازه د غوټۍ په دود ونغښته
حال د زړه به مې مدام ورته تحریر کړ
که دلبر نه وای خبر له دې خواهښته
محبوبه پر بستر واوښته له خوبه
که هوسۍ وه د بهار پر ګلو رغښته
کېنت د عشق مې سو زرغون په خراب دل کې
په هیڅ وخت یې نه خلاصېږم له کاهښته
رب دې نه کړي چې جمال به یې زه هېر کړم
که تر سر لاندې مې کښېږدي د ګور خښته
سپین مړوند د دلرُبا که مې سرویږد سي
سر به هسک نه کړم د وصال له بالښته
وهر څه نه چې حجاب خپله هستي سوه
پیدا مه وای **پیرمحمد** د څه له پښته

شمس الدین کاکړ

## غزل

نه به ګل وي ستا د مخ په څېر خوشرنګه
نه به خوله وي د غنچې دا هسې تنګه
سر د زلفو چې دې سو د بل په لاس کې
سررشته مې د اقبال لاړه له څنګه
چې مې چین ستا د جبین د سترګو ولید
مدام سر لکه آبشار وهم له سنګه
په ژړا مې د آشنا ئي له سوره خطه
آینه د زړه صیقل نکړه له زنګه
زړه تر خو به کړي حذر د یار له سترګو
دلاوره کله ښتنه کړي له جنګه
رقیبان که عار و ننګ خما له قتله
خلاص یې کړه په یوه تېغ له دغه ننګه
تر کمانه ښېرته نه چې تر زړه تېرېږي
ځان به څوک وړي سلامت له دې خدنګه
له هوسه به یې طی د زړه په شان کړم
که خما و یار تر مینځ وي سل فرسنګه
څوک چې وسپاري خپل ځان د عشق په بحر
هغه کله اندېښنه کړي له نهنګه
پراخ جهان و "**شمس الدین**" ته قاف تر قافه
ستا غمو کړ دکه میم د یره تنګه

اکبر زمینداوری

## ملي بدله

زه چې په مینه معشوقو د بنګړو شرنګ لره ځم
زه د هجران د ښلتانه د تورو جنګ لره ځم
زه ایوته یم په هجران سره قرار نه لرم
هجر مې اوږد سو د وصال دامید کار نه لرم
ښلتون په خوله راکړې څپېړې زه لا عار نه لرم
وام د معشوق پر سینه پروت زه تور لونګ لره ځم

ځینې بې ولې څوک عاشق څو رنګ په توري کاندي
پر خوار مېین د شها هومره هوري زوري کاندي
بې تیاره نه که چې پلو له مخه لیري کاندي
چې راوپاڅه په اخلاص چې خپل څورنګ لره ځم

اول خو ته تجلی پر عشق باندې اقراره سولې
اوږ دې رابوري کې نور کښېنستې قراره سولې
هیڅ ګفتګوی له عشقه نه کوې بېزاره سولې
یو وار خو ووایه قرار چې د یار څنګ لره ځم

میر نعیم متي زی

## غزل

په وصال کې مې ژیاتېږي شر و شور لا
ستا ښلتون راباندې ولګوی اور لا
د اسروی متاع که غوارم په یارۍ کې
په سودا کې ستا د مینې سم سرتور لا
که په مینه کې تهمت په ما وایه سي
د عشق کار مې پخته کېږي په پېغور لا
که هر څو یې په امید ورسم تر زلفو
لګوي مې خوله پر زړه باندې منګور لا
په ژړا سي هیڅ پروا د ښکلو نه سي
په باران د باغ ګلونه سي سمسور لا
لکه موم یې ویلې کېږم د مخ نور ته
په وصال کې راښکاره که هسې زور لا
چې یې خیال د زنخدان و زړه ته تېر کړم
په کوهي کې مې غوزار کاندي نسکور لا
که "نعیم" ته ځان ښکاره لکه آفتاب کړي
لکه ګل هسې یې زړه ورته خور لا

# هنر او ادب

چلوونکی
طه
بهیر

عبدالباري جهاني

## غزل

نن مې د خيال پر خکندن باندې خولې راولـه
وروستي خمار ته مې يو عکس د پيالې راولـه

چې د زاهد پر سترګو وکړي په لپو اوبه
تېزي ګودر ته مې يې پېغلې سلسلې راولـه

زه مې نصيب د ژوند په کور کې خندولی نه يم
د خيال پاتې ته مې څو سوې غلبلې راولـه

د قلندر په څېر مې تنګ دی په کچکول کې ايښی
راته جنانه د ديدن تشې وعدې راولـه

پټ د عدم او د رقيب له بدو شوخو سترګو
پر وينو شيو مې د يودونو جنازې راولـه

ستا د بېلتون د وينو شيو قصه نيمګړې نه مې
خوږمنو سترګو ته مې څو اوښکې تودې راولـه

خدای په امان **جهاني** ولاړ مه يې نه راځمه
پردېس مزار ته مې يو نذر د ډېوې راولـه

احسان الله جرس

## غزل

چې ته خفه وې. ما په قصده په غوصه کړلې ته
ستا و خبرو ته مې داسې بهانه جوړه کړه

زما په هر نظر کې يار د ستا څېره ښکارېږي
ما مې له سترګو نه جنانه آئينه جوړه کړه

ښکـ مې له خيال زړه او الهام مې ستا له حسن او خيست

ما مې د زړه له درد نه ښکلې افسانه جوړه کړه

زموږ د کلي شيخ ښتيا هم پرهېزګاره ښکاري
قبرونې لاندې کړه او ځانته يې حجره جوړه کړه

زموږ رهبر چې د پردو ته څه سوغات وړل وو
ګلونه نه وه، زموږ له زړونو يې تحفه جوړه کړه

د جانان نوم مې يې پر هره يوه پاڼه وکښېښ
ما مې له زړه نه يو ډ کـه سپېره جوړه کړه

ښورو و سترګو ته څه وکتل موزون سو د تولـه
او ما **جرس** وړنه يو سپينه ترانه جوړه کړه

عبدالمجيد بابي

## غزل

مينه چې باغي سي زړونه وريت سي د لمبو پر سر
حسن چې حيران سي يار نه سي د کوڅو پر سر

وصل لېونی سي چې وصال يې تندي ومينځي
ولګوي خولې چې بدضميره سي د خولو پر سر

چيغې د ښتينو به تور کاڼي پر سر وولـي
هر زوړ چې سپېڅلی سي لا زانګي د نېزو پر سر

مخ ته د زوب چې تورو څپېه د غلا په نيت کښېني
خود به سپين باڼخو را پسارېږي د تېرو پر سر

زاوري د پښو کوړ ته فن عقل چې مرسته سي
خوری يې په خولـه سي او پېيږي د سلګو پر سر

دا د ادبو کوز دی چې د لمر وړانګې يې خال ښيي
دا چې خوخېده يې رانېکاريږي د څپو پر سر

دا توره کينه کـه د تور زړه پر تخت سپېره نه وي
ولـې به تري څوک القاعده د پښتنو پر سر

کشکي نـاز د نازه سره مل وای د ښېرزين تر څنګ
نـه به چې شيندلای سپېرې ناري د پېرزو پر سر

دا د **بابي** يرن دی کـه **بابي** د وينو لاړ څاړي
سره چې يې ګسونـه دي خوخيږي د اغزو پر سر

محمد سرور واصل حسنيار

## غزل

څومره هنر دی چې د خنبه تر غره خان اړوي
د خموشۍ بېړۍ د قهر پر توپان اړوي

پخوا مې نه لوېدی و زړه ته د دالرو طاقت
اوس يې صنم د يو افغان څه بل افغان اړوي

نه سومه پوه مغرور رقيب مې څنګه پښو ته راغلی
شي يې په دا دول له ما څخه جانان اړوي

هر نوی مشر مو په ژوند کې هومره فرق راولي
هغه کيسه هغه مضمون وي خو عنوان اړوي

د عقل کور خرابوي تول د دنيا په کار کښې
**واصله** دغه د ګان تر کتبه ايمان اړوي

احمد صميم

## انارګل

انارګله! ستا په څنګ کې څوک مستېږي
چې په تا کې ياقوتي شراب پخېږي

مګر زه دې په ليدلو هيجاني شم
ما ته بيا د وينو بوی راولاړېږي
سره خيالونه، سره خوبونه مې سرې ورځې
سرې جنډې د وخت په ياد مې چې راپېږي
تول فکر يې غروب شي يې شفق شي
د رمندونو اور اخيستي وي سوځېږي
د سکروټو لاوايي* مواد راغورځي
هره خوا آتش فشان را وخوټېږي
سرې مرمۍ لکه ژلۍ اورې له پاسه
انسانان پخپلو وينو کې لمبېږي
د قطبي خرسانو لويي ګلۍ راسي
اوربوزونه يې په وينو معلومېږي
مځکه سره شي د سرو وينو په اورولو
تر برېښو د وينو څاڅکي وڅڅېږي
د محزون زګېروي آهنګ مې تر غوږه شي
د حسرت په کوکو ستوني ولړزېږي
يخه شپه وي منجمد غمونه رېږدي
زندانونه په بنديانو ننه مړېږي
خلک ټول له وارخطا شي لار کې ورکه
سور د لوره پيلار د زوی څخه ورکېږي
د هجرت لوري غوټه‌ی ته خلک خېژي
د وحشت سېلاب دکې وهي غورېږي
مهربانه غېږ، عنقا غونډي شي ورکه
هولناکه سيې وينه راسېږي
هر سهار مو پر افق سکروټي بل وي
سپين سحر پر دغه سيمه نه خلېږي

انارګل هم د سکروټو مشال شي
د **صميم** ته سور کمون ور په ياد پېږي

---

* (لاوا) د مځکې ويلې مواد دي چې کله کله د
اتش فشان په ذول تر غره را وزي

سعيد لودين / تورنټو ـ کاناډا

## غزل

تر څو چې دم وي په قدم کې تر هغو پورې څو
جانانه زموږ منزل د هوي دي تر د هوو پورې څو
زموږ او د کلي تر مابين دېر کږلېچونه سته دي
خو ها وعدې چې مو دي کړي تر وعدو پورې څو
رقيبه دلته مقاومت د خالق عطا ده
تن پر غره داورې يو سبا به تر چينو پورې څو
ستا په بې پستي کې چې نيستي د نيستو وويښو
نه څو قبله او نه رکوع کړو بس سجدو پورې څو
د زړه د سوي ښار احوال به وپردو ته وايو
کاروان د اوښکو يو د سترګو تر ښو پورې څو
له تور د غاره څو دنيا ورته تيار به ښکارېږي
ورتګې د لمر يو د ملا تر حجره پورې څو
موږ ګرز وهلو ته په سپکه ستړګه ولې ګورئ؟
پلونه د قيس يو د ليلا د غېږ تر شپو پورې څو
**سعيده** بيا به هغه شپې هغه وختونه راسي؟
چې زه او يار مې له ساحله تر څپو پورې څو

عبدالقديم پتيال

## غزل

سوړ له موج سره آشنا يو تر توپانه به ورځو
د لمړونو قاصدان يو تر آسمانه به ورځو
له مستۍ سره بدمست يو له ډېرو مو پروا نشته
به ټکو پښو زاهده تر مغانه به ورځو
منصوري قهر مو ويش دی دار مو نه شي ګرځولای
د خيال سر په نذرانه کې تر جانانه به ورځو
له محرابه بغاوت دی له توبو توبه ګاري ده
د ګناوو پر لار بانډي تر ايمانه به ورځو
څه که سر به پلو آسمانه څو ورځو چې هر څه کېږي
د رندانو په خلاصون کې تر زندانه به ورځو
د هوس څراغ به ستا په سپېڅلو رڼو تيلو
د مست خيال پر وزرونو تر سبحانه به ورځو
بيا به بزم وي ملګرو له سينو به مستي زېږي
په نوروز کې په ګډا تر سخي جانه به ورځو
زړه به سپين کړو د مخونو په څېر ښکلي او روښانه
بيا د نور په سلګرتيا تر لامکانه به ورځو
په تصوير کې د **پتيال** د انګړونو ښيښې دي
څو د يار او د تنګ تر هر فرمانه به ورځو

حیات الله رفیقي

# د کاکړو ټبر



د کاکړو ټبر د پښتنو په ټبرونو کي لوی ځای لري. د دې قوم او ټبر لوی ځای د کوټې د ږوب او لورلايي سيمي ډېري مشهوري دي چي زياته مشهوره يې د زيارت سيمه بلل کېدای سي. خو دا ټبر په همدې سيمو کي محدود نه پاته کيږي بلکي زموږ د ګران هيواد په هره سيمه کي د دې وياړلي ټبر خلک سته. خصوصاً د کندهار په لرغوني ولايت کي ډېره لرغونې ستړه لري او يو ډېر شمېر د دې ټبر په کندهار او د همدې ولايت په نورو ګاونډيو ولاياتو کي د نورو ټبرونو سره د ورونو په څېر ژوند کوي.

د کاکړو د ټبر په اړوند ډېرو تاريخ پوهانو ډېري پلټني کړي دي خو د دې ټولو څېړونکو او پلټنو څخه يوازي دونه څه په لاس راغلي دي چي د دې ټبر د سر سړی کاک نيکه ښوول سوی دی چي د سلطان غياث الدين غوري په وخت کي (۵۸۸ه) کي په هرات کي اوسېدی.

که موږ د دې ټبر ډېر ښت ته خير سو دا خبره يو څه په شک کي معلوميږي چي د دې ټبر لومړی نيکه دې همدا کاک نيکه وي، خو دا به درسته وي چي په دې ټبر کي به همدا نيکه د ستر تابه ځښتن تېر سوی وي او شايد د دې نيکه روحانيت او نوميالیتوب به ده ته د نيکه وياړ ور په برخه کړی وي خو د ټبرونو په لرغونو تاريخونو کي د دې ټبر ښکاره او څرګند معلومات نايابه دي. مګر د ټبرونو په نورو څېړونو کي داسي څرګندوني راغلي دي چي د دې ټبر د لومړي نيکه (کاک نيکه ) وړاندي يو نيم زر کاله د پښتنو په سيمو کي خصوصاً په ږوب کي دا ټبر اوسېده او موجود و.

د تاريخي شواهدو پر بنياد داسي معلوميږي چي د پښتنو د ږوب په سيمه کي د کاکړو د ټبر سترتوب يو ښکاره حقيقت دی او تقريباً دوه نيم زره کاله پخوا هم د کاکړو ټبر هلته موجود و او د دوی د کلتور او تهذيب لرغوني بېلګي موندل سوي دي څکه چي د دې ټبر اوسنی تهذيب او د کلتور يو شانوالی او مشابهت د دې خبري يو ښه دليل کېدای سي او همداسي معلوميږي چي د دوی د هغه رسم و رواج د پخوانيو آريائيانو د رسم و رواج سره ډېر ورته والی او نژدېوالی لري. بالآخره د دې ټولو دلايلو او تاريخي شواهدو څخه دا نتيجه په لاس راځي چي د کاک نيکه د لومړي نيکه په ډول خبره بې بنياده او تاريخي جوتتيايې کمزورې ده او د حقيقت څخه ليري بريښي. ولي چي دا ټبر دوه نيم زره کاله پخوا په يوه داسي منطقه کي اوسېدی چي ځيني ښاخونه او څانګې يې هم لرلې.

د اروپا د لومړي وخت تاريخ څېړونکو چي کومي څېړني په دې باب کړي دي د هغو څخه دا په ډاګه څرګنديږي چي د دې ټبر يوه څانګه د ښټن په نامه راغلې ده چي دا په سنسکريت کي د ستر مورخ پاڼيني په نامه سره ختمه سوې ده چي د حضرت عيسي څخه يې وړاندي والی دوه سوه پنځوس کاله بلل کيږي. نوموړی د دې ټبر يو لوی عالم او د آريائي ټبرونو د عالمانو مشرتوب يې پر غاړه لاره چي د اباسيند پر غاړه اوسېده او د تاريخي اسنادو له رويه داسي معلوميږي چي په هغه وخت کي د اريانا په خاوره کي چي کومه ژبه ويل کېده د هغې ژبې د ليک دود په جوړښت کي هم د دې ستر عالم لاس و چي د

هغوی په نوښت دغه ژبه د سنسکریت په نامه وبلل سوه .

د پښتنو یو مشهور عالم ارواښاد مولانا محمدامین خوګیاڼي په خپله یوه لیکنه کي چې د (افغان) په باره کي یې لیکلې ده د پېښور په رساله کي چاپ سوې ده دغه پېرنۍ څانګه یې د کاکړو ټبر ته منسوبه څانګه بللې ده .

یو بل ستر څېړونکي مولانا محمداسحق صاحب چې په سنسکریت کي ښه بلد و او په دې ژبه ښه پوهېدی داسي وايي :

دا ریایي ولسي ژبې د علمي کولو له پاره پوهان راغونډ سول، نامأنوسه او بې خونده الفاظ یې څني وایسته او د سنسکریت په نامه یې یوه علمي ژبه جوړه کړه .

د دې بیان څخه دا جوتیږي چې دا ژبه (سنسکریت) په هغه وخت کي رامنځته سوې ده چې دغه څانګه(پنړي) چې نن هم په کاکړو کي وجود لري په هغه وخت کي هم وه .

له دې څخه علاوه موږ ته د څلورو پخوانیو ویدي او هندي راګونو څخه هم دا څرګندیږي چې د دغه وخت سرودونه هم پر هغو اوزانو باندي ویل سوي دي کوم چې نن کاکړي غاړي ویل کیږي. ځکه چې دا سرودونه په هغه ډول او طرز جوړ دي کوم چې نن کاکړي غاړي په همدې وزنو جوړیږي. یعني د کاکړي غاړي مصرۍ د اوو څخه تر اتو سېلابو پوري جوړیږي او په هغو سرودونو کي هم دا مراعات لیدل کیږي . نو کېدای سي چې دا سرودونه د ویدي د لنډو مصراعو مطابق جوړ سوي وي .

په هر صورت دا بحث زموږ د موضوع برخه نه ده دا یو جلا بحث ته ضرورت لري خو صرف دلته مقصد دا دی چې دا شعري طرز د پښتنو او پښتو په نورو قبایلو کي په دې رنګ او په دې وزن نظم نه دی ویل سوی او نه پکښي سته که چیري د پښتنو په یوه بله لرغوني قبیله کي دا ډول د ادب بېلګه وای نو بیا دا ویل کېدای سوای چې کاکړو د هغو څخه تقلید کړی دی مګر اوس داسي ویل ګران دي .

اوسنۍ څېړني دا جوتوي چې د حضرت عیسی ﷺ تر پیدایښت تقریباً اته یا نهه سوه کاله وړاندي چې کومه قبیله ژوب ته راغلې وه هغه کاسیان وه خو ثبوت یې ګران کار دی . خو په هر صورت د کاکړو په اړه که څه هم پوره او ژور معلومات نسته لیکن د لوړو دلایلو پر بنا موږ دا ویلای سو چې دا ټبر لکه څنګه چې ځینو تاریخ پوهانو د میلاد څخه اته یا نهه سوه کاله وړاندي بللی دی داسي نه ده ځکه

چې دا پخپله د ژوب د نامه څخه څرګندیږي چې دا نوم د دې قبیلې سره یو ځای تقریباً څلور زره کاله پخوا راغلی دی، ځکه دا نوم په تاریخ کي یوازي یو ځای اروېدل سوی دی هغه هم د څلور زرو کالو وړاندي ذکر کوي چې د (زاب) په نامه په هغه وخت کي یاد سوی دی چې د آسوري پاچهانو جنګونه د زاکروس چې د ایران او عراق تر منځ کېدل ذکر راغلی دی چې د اسوریانو د حکومت اخیرنی شرقي پوله همدا (زاب) بلل سوې ده چې د سوکه و لهجې ته د تغیر په صورت کي په ژوب بدل سوی دی .

د غرغښت نامې لیکوال دوست محمد کاکړ او شیرمحمد ګنداپور د کاک نیکه … د زیارت له پاره هرات ته تللي وو او د هغه نیکه د زیارت په وخت کي یې ویلي دي چې د کاکړو دوې څانګې چې یوه یې سنځرخېل دي او بله څانګه یې د سنټیا په نامه یادیږي اوس هم په همدې نامه وجود لري چې سنځرخېل د سنځر نیکه اولاده ده او سنټیا د سنټ نیکه اولادې ته ویل کیږي .

د کاکړو ټول قبایل د خپلې خاوري سره زیاته علاقه لري کوم وخت چې انګریزانو په کال ۱۷۸۶ ع کي پر دوی حمله وکړه دوی د خپل هیواد د خپلواکۍ له پاره د هغو سره سخت جنګونه وکړل . کاکړ د خپلې خاوري سره د ډېري مینې او علاقې زیاتي بېلګې لري چې د دوی په ادب او کلتور کي ښه پوره ونډه لري . حتی د کاکړو ښځې او وړې نجونې د خپلې خاوري سره د مینې څرګندویې په کاکړي غاړو کي راوړي. مثلاً : کوم وخت چې انګریزانو د دوی و منطقې ته لاسونه را اوږده کړه نو دوی پر خپل وطن باندي د هغو د کاډیو ټېر بدلو ته په نفرت کتل چې د دوی د ښځو او پېغلو په ادبیاتو کي دا نفرت داسي څرګند سوی دی :

د سنځر نیکه پر مځکه
ګاډی مه پرېږده لانکه
دا غر زموږ د نیکانو
اوس پر ناچ ګر جوړ کړ میمانو

دا پوره ته غاړه هغه وخت ویل سوې ده چې انګریزانو د دوی په سیمه کي د اورګاډي لین جوړاوه، د خپلې خاوري سره تر مینې راوروسته په دې ټبر کي ډېر د قدر وړ ستر عالمان او درانه مشران تېر سوي دي او په دې ټبر کي دا علمي پیوند تقریباً یو جنتکي حیثیت موندلی دی په هر وخت کي په دې ټبر کي وتلي علمي شخصیتونه راټوکېدلي دي چې د اوسنۍ زماني یو څو مثالونه یې زه دلته راوړل غواړم، لکه :

پاته په (۷۱) مخ کي



# د وانگوگ

## په تابلوگانو کې د فقر رنگ

له "گاهنامهٔ هنر" مجلې څخه
د روایت کندهاري ژباړه

وانگوگ د مهرباني، زړه سواندي او میني د روحیې په توسن د خپلو همکارو هنرمندانو او د خپلو وطنوالو په بې پایه میني کې ډوب او له دغې میني سرشاره و.

دغې میني دی د هنري آثارو تر تجارت وروسته د الهیاتو د رشتې تحصیل ته ور وکښی چې د تحصیل تر خلاصېدو وروسته ده په بلژیک کې په وعظ پیل وکړ. دغه ځای و چې وانگوگ د لومړي ځل له پاره په ۱۸۸۰ میلادي کال کې په ۲۷ کلنۍ کې په انځورگرۍ پیل وکړ او له وعظ څخه یې لاس واخیست او له نقاشۍ سره یې زړه وتاړه.

له دغه وخته یې بیا د عمر تر پایه دغه کار په دونه لېوالتیا وکړ چې کابو ۶۰۰ تابلووي او تر ۸۰۰ ډېر تصویرونه او آبرنگونه په یادگار ځني پاته دي.

د وانگوگ یو له ډېرو ښو او مشهورو آثارو څخه د "پټاټې خوړونکو" اثر دی. دا تابلو په داسې وختونو کې انځور کړه سوه چې ونسان وانگوگ د هالنډ په بارابانت سیمه کې ژوند کاوه چې ډېر خلک یې خواران، غریبان او کسب کاره ول. د ونسان په گاونډ کې د دوگروت په نامه یوې کورنۍ ژوند کاوه چې ډېر فقیرانه ژوند یې لاره او زراعت یې کارو.

د دغې کورنۍ خورک پټاټې وې. پټاټې یې کرلې، پټاټې یې اخیستلې او پټاټې یې خوړلې، د دوی د عمر حاصل بس همدا پټاټې وې.

ونسان وغوښتل چې د دغې کورنۍ په باب یو اثر رامنځته کړي. له یوې خوا ژمی خپل اوج ته رسېدلی و او له بلې خوا د دغې سیمې کشیش پاولز له ونسان وانگوگ څخه غوښتي وه چې د میاشتي تر پایه چې یوازي یې پوره کېدو ته دوولس روځې پاته وې، سیمه پر ېږدي. درې روځي وروسته ونسان خپله سه پایه*.

* دا د انځورگرۍ په هنر کې هغه درې پښې لرونکې وسیله ده چې د نقاشۍ تحوکر پر اېښوول کیږي (ژباړن)

رنګونـه، ټـوکر او د انخـور ګري برسـان راواخیسـتل او د دوګـروت وړوکـي کـور تـه ولاړی. هلتـه هیڅـوک نـه و، ونسان د دغه وړوکي کور دننه برخه رسم کړه، څرنګه چي د دوګروت کورنی راغلـه، پـلار، مور، یـو زوی او دوې لوڼې پر مېز راوڅرخېدل، نو ونسان په کار پیل وکړ او د هغوی د خوب تر وختـه یې کـار تـه ادامـه ورکـړه او بیا نو خپل کـار ځای ته ولاړی او تر سپېدو پورې یې پر سرپرده کـار وکـړ او بیا نو ټوله روځ بیده سو، کله چې له خوبه راکښېنستی، نو یـو ډول ناارامي یې په څېره کې لیدل کېده او خپل اثر یې اور ته وغورځاوه او د دوهم ځل له پاره بیا د دوګروت کور تـه ولاړی او دوګروت د تیـري شپې غونـدي د ماښام ډوډی تـه کښېناستل او ونسـان پـه کـار پیـل وکـړ او پـه یـو خـاص او حیرانوونکي ډول یې کار شروع کړ، مګر په سبا سهار یې بیا پرده څیري کړه. بالآخره د میاشتي روځ راورسېده او باید په سبا سهار یې بارابانت پرې ایښي وای.

په هغه شپه ونسان په ډېري ناآرامی او هیجاني ډول د دوګـرت د کورنـی پـه وړوکـي او سـارایي کـور کـي خپلـه سه پایه ودروله او پر پلېټ یې د رنګونو په ګډولو سره خپله انخور ګري پیل کړه، د دوګروت کورنی تر ډوډی خوړلو وروسته په هغسي ډول پر مېز پاته سوه، تر څو خوب یووړه، ونسان بې اندازې ستړی سوی و.

د نقاشـی سـامانونه یـې راټـول کـړل او د دوګـروت لـه کورنی سره یې خدای پاماني وکړه او په خوبولي حالت کي کور ته ولاړی، څرنګه چې خپل کارځای ته ورسېدی، تابلو یـې خپـل مـخ تـه کښېښـوول او پـه ننـداره یـې بوخـت سـو، درسـت اثـر یـې تـر سـتر ګو بـد وایسـېدی، د موضـوع روح پکښـې ورکه وه، یو ځل بیا یـې ماتـه خـوړلې وه. نابېره ولاړ سو او اثـر یـې لیـري وغورځـاوه او یـو ځـل یـې بیا د نقاشـی یـو ځـانګړی ټوکر (کنوس) پـر سـه پایـه ودروی او نوی یـې پـه کار پیل وکړ.

اثر یې له سره تر پښو د په خاورو لړلو پټاټو په رنګ لـه سره وکښی، پر اثر خیرن مېز، دود وهلي د ېوالونه او پر چت راځړ ېدلی څراغ لیدل کېدی.

د اثر د ټولو کرکټرونو په څېرو کـي د یو ډېر آرام زغـم منل او د نړی یو زغمونکی تلپاتی نظام لوستل کېدی. لمر راوختـي او یـوه نـړی وړانګـه لـه کړکـی څخـه خـوني تـه راولوېدله.

ونسـان لـه چوکـی څخـه ولاړ سـو، ځـان یـې بشـپړ آرام احساساوه، د تیرو دوولسو روځو ناآرامی او ستړیا ځني تللې وه، خپـل اثـر تـه یـې پـه ژور ډول وکتـل، د دود او پټاټو بـوی ځني ولاړېدی. کرار یې وخندل او هغه څه چې غوښتل یې تر سره کـړي یـې ول. دا بارابانتي بزګران پـه تلپاتي ډول



پټاټي خورونکي (کچالو خوران)

ژوندي سول ول، خپله نقاشي يې د هگی په سپينو پر پوله او لاندي ي ور ته وليکل :

**پټاټې خوړونکي (کچالو خوران)**

دغه اثر يې له خپلو نورو ښو تابلوگانو سره يو ځای وپېچی او د پاريس پر لور يې حرکت وکړ . دغه اثر چي دروند او کلک دی او انتقال يې نقاش ځوروي. د وانگوگ له لومړنيو انځورگريو څخه دی. چې يو شاهکار بلل سوی دی .

اردآناسن په دې گروهه دی چي : د نولسمي پېړی په منځنيو کې د ځينو رياليستانو اغېز له دغې تابلو څخه احساسيږي .

دغه اثر چې د سترو او رنځورو بزگرانو سره د زړه سواندی بيانوونکی دی وانگوگ د (ديفرماسيون يا ريفورميشن) د رسمو په گډولو سره غوښتي دي چې دا وښيي چې دغه خلک چې د څراغ تر روښنايي لاندي د پټاټو په خوړلو بوخت دي، هغه لاس چي په کاسه يې ننه باسي، په مځکه يې ننه باسي. له دغې وجې د دغې کورنۍ د غړو لاسونه په ډېري خواری سره د کلونو. کلونو په نتيجه کې د مځکې مخ ته تغير ورکړی دی او د دوی له مظلومو او آرامو څېرو څخه د يو ډېر ځپلي ژوند څرک لگيږي چي بېله صبر او زغمه بله چاره نه لري او دغه کار وانگوگ په ډېر ښه ډول تر سره کړی دی .



وانگوگ د هغوی معصومي څېرې. له شرفه ډک ژوند. وچ اندامونه. ځيري او زاړه کالي او د يوې حلالې گولې په پيدا کولو کې د دوی نهايت تلاش ډېر ښه بيانوي .

ونسان غوښتي دي چي د دوی د څېرو او اندامونو د رنگونو په ديفرم کولو سره دا وښيي چي دغې کورنۍ په کلونو. کلونو د ژوند د خوار يو او غريبيو دروند بار پر اوږو وړی دی او له دغسي ژوندون سره بېله جوړ جاړي بله چاره نه لري .



وانګوګ د هالنډ له ټولنيزو مسايلو سره په ژوره توګه بوخت و او د خپل هنري ژوند په لومړيو شپږو کلونو کې يې د بېوزلو کارګرو او د دوی له درد او رنځه د ډک ژوند انځورګري يې خپله دنده ګرځولې وه، لکه څنګه چې د خپل ژوند په وروستيو کې په يو ليک کې خپل ورور ته داسې کاږي:

"... مګر تر اوسه مې هم دا موضوع په ذهن کې ده، يو بزګر، يو باغوان، يوه کالې پر ټولونکې ښځه، يوه ګنډونکې، يوه مزدوره ښځه، يو مرستون، يو سودګر او ... ".

وانګوګ په دغو نقاشيو کې د خپلو ټولو آثارو غوندې د کارګرانو د طبيعي ژوندانه له ظاهري شيانو سره کار نه درلود، بلکې له بنسټيز اصل يعنې واقعيت سره يې کار و، هغه واقعيت چې ده بيان کړی و، هغه د انسان د وجود فقر دی چې په تورو او قهوه يي رنګونو په ضخيم ډول سره د تصاويرو رنګول انځور سوي دي او دغه طريقه د ده له هغه لومړني هنري ژوند څخه د ده يو بېل سبک ګرځېدلی دی.

د وانګوګ په طرحو کې ځوان بزګر چې تنه يې د ډېر کار له وجې کږه په سوې ده، کاملاً يوازې دی، هغه ښکسه چې د يوې حلالې ګولې له پاره مبارزه کوي، تل له تهديد سره مخ وي او هيڅ ملاتړ نه لري.

کږوږې ملاوې، ځړولي سرونه، د بزګرو او کارګرانو تحقير او سپکتيا او په مجموع کې هغه مفاهيم چې پورته يې يادونه وسوه، وانګوګ په ديفورميشن لاس وواهه، چې د پېټاټو خوړونکو تابلو يې له دغه ډول شېوې څخه د کار اخيستنې يوه ډېره ښه بېلګه ده.



# ډاکټر ګيشه

## د نړۍ تر ټولو لوړبيه تابلو

پورتنۍ تابلو د وانګوګ د انځورګرۍ يوه بولګه ده، چې په ۱۸۹۰ ميلادي کال کې انځور سوې ده، پوره يوه اونۍ وړاندې تر دې چې وانګوګ په ځانوژنې لاس پورې کوي.

دغه تابلو (ډاکټر ګيشه) نوميري آخر د يو جاپاني سوداګر له لوري په ۸۲.۵ ميليونه ډالرو په يوه بې جوړې ليلام کې د ۱۹۹۰ کال د مې په مياشت کې رانيول سوه.

"ريويي ساتيو" دامپرسيونيست د انځورګري له آثارو سره علاقمند دی او ضمناً د نقاشۍ د آثارو يو کليکسيونر هم دی، وايي چې تر اوسه د نقاشۍ هيڅ اثر په دغه بيه نه دی پلورل سوی. د ډاکټر ګيشه تابلو په نړۍ کې د لوړبيې تابلو ريکارډ ټينګ کړی دی.

ډاکټر ګيشه د وانګوګ شخصي معالج ډاکټر و چې د ده د عمر تر پايه يې مراجعه ورته کوله او د ده درملنه يې کوله.

دا يوازنی انځور دی چې وانګوګ هغه په پوره ډول سره بېله دې چې شکل، صورت او غړو تې تغير ورکړي انځور کړی دی او دا د ده يو ځانګړې مينه ده چې د خپل معالج ډاکټر سره يې ښيي. د وانګوګ د آثارو د لوړې بيې سربېره دا ويل کيږي چې وانګوګ په خپل ټول ژوند کې توانېدلی و چې يوازې يوه تابلو خرڅه کړي او هغه هم په ډېر ټيټه بيه چې له دغې بيې سره هيڅ نه سې پرتله کېدلای.



# د سدوزو تاریخ

ژباړونکی عبدالرؤف رفیقي/ کوټه

د سلطان خدکه درې زامن وو :

قلندر خان، عنایت خان او حیات خان . د قلندر خان مور مغله وه او دا نور دوه زامن یې د نورزۍ ښځې څخه وو. قلندرخان ته د ابدالیانو سرداري ورسپېده. لاکن هغه تر دوو میاشتو او درویشتو شپو سرداري پس د کندهار په جنګ کې شهید سو. هغه اولاد نه درلود . دا ډول عنایت خان سردار سو. په دغه وخت کې یوه بله پېښه دا وسوه چې د سلطان خدکه کشر ورور سرمست سلطان بغاوت وکړ او د سرداري دعوه یې وکړه . جنګ وسو او هغه ووژل سو . د دغي پیښي دوه کاله پس عنایت خان او حیات خان په ښکار تللي وو هلته حیات خان د یوه ازبک غلام په ذریعه خپل ورور عنایت خان وواژه. او مړی یې هم هلته ښخ کړ .

دغه خونړۍ پېښه په ۲۳ ربیع الاول / ۳۰ دسمبر ۱۶۶۷ ع وسوه. د دوی مور یعني د سلطان خدکه کونډه ډېره دلاوره او غښتلې ښځه وه. دغي پیښي د دې پر ذهن ډېر ژور اثرات واچول . د کشر ورور د لاسه د مشر ورور وژني د دې قهر او غضب تر انتها ورساوه. دې خپلې لښکرې د صفا په قلعه کې سره راټولې کړې د هغه وخت مشرانو دې ته صلاح ور کړه چې څه کېده هغه خو وسوه. اوس ته د زغمه څخه کار واخله او حیات خان وبخښه کنې د خدکه کورنۍ سرداري به په خطر کې ولوېږي. او وبلې خواته د سرمست خان خلک هم تیار ناست دي . لاکن د دغې ښځې غضب لږ نه سو او اعلان یې وکړ چې حیات خان به فنا کوي او د سلطان عنایت خان خور ته به د مشر تابه واک ورسپاري . مشرانو ډېر خواستونه ورته وکړل چې د نجلۍ مشرتوب هیڅوک نه مني تر څو یې دغه ښځه رضا کړه چې هغه قاتل غلام به دې ته سپاري او حیات خان به تر مرګه و دې ته بیا مخ نه ورښکاره کوي. تر څو یې هغه ازبک غلام و دې ته وسپاره او د مراد بي بي په امر دغه غلام د وزې په شان حلال کړه سو او مړی یې و سپو ته ورواچاوه او بي بي یې د وینو پیاله وڅښله. په دې ډول یې خښم لږ وځاته .

### د سلطان حیات خان د حکمرانۍ وخت

سلطان حیات خان د ابدالیانو مشر سو. ده د سلطان لقب غوره کړ. ده په خپل ظلم و ستم یې پر خپلو قریبانو او د سرمست خان پر خلکو د مځکې سر تنګ کړ . د کوم له کبله چې د سدوزو د کورنۍ ځیني خلک و ملتان ته په هجرت کولو مجبور سوه. په دوی کې د بهادر خان او کامران خان اولاده هم وه . هلته په ملتان کي دمخه لا شاه حسین خان او الله داد خان اوسېده. چې ژوند یې ډېر هوسا او آرام و. دغه مهاجرو په کړې شاه حسین خان کي استوګنه غوره کړه. د سلطان حیات خان د ظلم و ستم دا ناورین و چې په ابدالیو کي به چا نافرماني وکړه هغه به یې وواژه. زیاتره خلکو د خان د بدي د صفا څخه ملتان ته مخه وکړه. په دوی کې جلال خان د ایدل خان زوی د زعفران خان لمسی او د امیر سدو کړوسی هم و چې د شاه حسین سدوزي خوریی و .

سلطان حیات خان پر کندهار او شاوخوا سیمو باندې قابض و. یو وار چې دی کندهار ته څرمه خیمه زن و. نو شاهنواز خان (چې په هغه وختو کې د کندهار حاکم و او د ایراني سلطنت نوموړی سردار و) چې دا ولید چې صفا خالي ده څوک نسته پکښې نو یې د صفا پر قلعه حمله وکړه. مراد بي بي قلعه بنده سوه. خو دې مردانه لباس واغوستی او په ډېر لږ خواک یې پر قزلباشي فوخ چپاو وروړی او شاهنواز خان ته یې ډېره بده ماته ورکړه. مراد بي بي په خپلو لاسو د ده څخه سر پرې کړ. ایراني لښکر و چې ډېر زیات خاني تلفات یووړه په تښتېدو مجبوره سوه. د دغې فتحې پس سلطان حیات خان په دا امید چې ګوندي اوس مي مور هغه ګناه راوبخښي د خپلو څو تنو محافظانو سره د مور په خدمت کې حاضر سو. د دغه غښتلي ښځې د غضب اور بیا سر وواهه. شمشېر ته یې لاس کړ پسي راوغورځېده. سلطان په وېره ځني منډه کړه. بي بي پسي را په هوا سوه تر څو د حرم سرای په وره کې یې پر ملا د پیش قوضې وار ور وکړ خو هغه زغره اغوستې وه پیش قوضي کار نه پر وکړ. بیا هغه تر مرګه د مور مخ ته نه ورغلی.

سلطان حیات خان د افغانانو له لوري د ایرانیانو سره دو د ډېرش واره جنګونه وکړه او بریالیتوبونه یې په برخه سول. دو د ډېرشم جنګ یې په ۱۰۱۹ هـ / ۱۶۱۰ ع کې په خراسان کې ورسره وسو. پېښه داسې وه چې صفوي سلطان د امام رضا د روضې د زیارت له پاره مشهد ته راغلی و. چې هلته یې د سلطان حیات د ظلمونو نکلونه واورېده. نو ده د سلطان د سر زنش تراڼ وتاړه. هلته سلطان د خپلو لښکرو سره خراسان ته راورسېده د خرپ جنګ وسو. ډېري ویني توی سوې تر څو سلطان ماته وخوړه. صفا ته راغی. جرګه یې راغوښته اعلان یې وکړ چې مخ پر هندوستان څو. د خپل اکا زوی یې د ابدالیانو مشر کړ. د خپل زوی عبدالله خان چې هغه وخت د دولسو کالو و. د احمدشاه بابا د پلار زمان خان ولد دولت خان ابن سرمست سلطان خدکه او موسی خان. کامران خان او نورو یو شمېر خلکو سره (چې شمېر یې تقریباً پنځه سوه وو) د ډېري لویې خزانې مال او اسباب سره مخ پر هندوستان را رهي سوه.

د یوې غرنۍ سیمې څخه چې راتېرېده نو د هغه ځای خلکو دا فریاد وکړ چې دلته په یوه غار کې یو آدم خوار اوسېږي زموږ سړي نیسي او دالته په دغه غار کې یې خوري هغه سړي سلطان راغوښتی. ډېر غټ سړی و. نهه فوټه جګوالي یې و. سلطان د آدم خوری د پرېښوولو زېرمه پر وکړه او دا بلنه یې ورکړه چې زموږ سره راځه چې ته غواړې هغونه پیسې به درکوو. خو هغه ونه منله. نو ده وویشتی. خلک د آدم خور په وژلو ډېر خوشحاله سوه او خان ته یې دعاوې وکړې. سلطان حیات خان د کوهستان ډېره غازي خان د غرنۍ سیمي پر لار د سنده تر دریاب راپرېوتی او د مظفر ګړه تر صحراوو راتېر سو. د جناب پر دریاب راواوښتی او په ۱۳ شوال ۱۰۹۳ هـ / مطابق ۱۴ اکتوبر ۱۶۸۲ ع ملتان ته راورسېدی

## جعفرخان

هلته جعفر سلطان ابدالي د شاه ایران په کومک پر قلعه قبضه وکړه او د سرداری اعلان یې وکړ. ده صفا هم تر ولقه لاندې راوسته. او واړه ابدالیان یې بیر ته په خپلو کورونو کې آباد کړه. او د کندهار د حاکم سره یې هم اړیکي سمې کړې.

جعفر سلطان په ۱۱۰۶ هـ / ۱۶۹۳ ع کې په هرات کې په حق ورسېدی.

## د عبدالله خان د واکمنۍ وخت

د جعفر سلطان د مرګ چې یې واورېده. عبدالله خان سدوزی چې د سلطان حیات خان خدکه مشر زوی و په تلوار د ملتانه څخه کندهار ته راغی. د ده سره څو تنه او یو یې باجه (د خوښینې مېره) زمان خان سدوزی د احمدشاه ابدالي پلار هم ملګري وه. ابدالیانو د دوی اطاعت قبول کړ او خپل سردار یې وټاکه. لنګوټه یې ور وتړل او ده د سلطان لقب غوره کړ. د سلطنت احوال یې زېرمه کړه او انتظام یې ترتیب کړ. عبدالله خان په ۱۱۱۶ هـ / ۱۷۰۳ ع کې زمان خان نائب السلطنت وټاکی او ملتان ته د خپل پلار سره د لیدلو له پاره را رهي سو د ملتان پښتنو د خوښي څرګندونه وکړه. ده خپل زوی اسدالله خان چې هغه وخت د اتلسو کالو و چې ډېر ښکلی او غښتلی و د خانه سره صفا ته راوستی. د دغه وختو د ایران ټولواک د خپلې عیاشۍ له کبله د خپلو رعایتو د احواله څخه بې برخې و.

## د حاجي میرویس خان غلزي کردار

حاجي میرویس خان د موقع په نزاکت پوه و. نو یې خپل استازی سلطان حیات خان ته ملتان ته ورولېږه او وړاندیز یې ور ته وکړ چې راسه چې غلزي او ابدالي په ګډه سره کندهار د ایرانیانو د تسلطه څخه خلاص کړو. سلطان خپل زوی عبدالله ته د ده د مرستې زېرمه په لیک

کې وړواستول . په دغه وخت کې د کندهار والي ګورګین خان و چې د ګرجستان حاکم و، چا چې پر افغانانو ظلمونه کړي وه، د قلعې دباندې جنګ وموښتی . ګورګین وواژه سو ایرانیان قلعه بند سول، په دغه وخت کې عبدالله خان د صفا څخه کندهار ته راورسېدی . ابدالي او غلزي فوځونو قلعه محاصره کړه، د خراسان څخه ایراني لښکرو کندهار ته مخه وکړه، د عبدالله خان ماتحت لښکرو د دوی مخه ونیوله، هلته د کندهار د قلعې محاصره روانه وه ایرانی کومک کندهار ته نه راورسېدی او ایراني پوځ په ۱۱۲۵ هـ /مارچ ۱۷۰۸ ع کې ماته ومنل او وسله یې کښېښوده او نتیجه دا سوه چې میرویس خان د کندهار پر قلعه بشپړه قبضه واخیسته .

تاریخ ګواه دی چې د ایراني لښکر د ماتي سوب د ابدالیانو د ایرانیانو سره جنګ و . د دغې فتحې پس عبدالله خان کندهار ته راغی . میرویس خان د قلعې دروازې ورته بندي کړې او ښار ته یې نه را پرېښوی دی بیرته صفا ته ولاړی .

**د جنګ حکمت عملي**

میرویس خان غلزي پر کندهار باندي د خپل حکومت اعلان وکړ . خود خپلي پاچهی اعلان یې ونه کړ، او په صفا کې یې د عبدالله خان حکومت ومانه. د ۱۷۰۸ ع خبره ده، د میرویس خان غلزي د خپلو کومکیانو د ګډ حکومت سره یوه معاهده وسوه چې د جنګ حکمت عملي وه لاکن یو فریب و .

**د ایراني واکمنی بشپړه خاتمه**

په دغه وخت کې د ګورګین وراره کیخسرو خان د عبدالله خان په کومک پر کندهار باندي د حملې تراڼ وتاړی تر څو قلعه له غلزیانو څخه خلاصه کړي خو عبدالله خان دا شرط کښېښووي چې کندهار به تر نیولو پس وماته راکوي .

ایراني سردار ورسره هو کړه . دواړو لښکرو په ګډه په نومبر ۱۷۱۰ ع کي پر قلعه حمله وکړه او د څلورو سرو خواوو څخه یې محاصره کړه . یو کال یکښي تېر سو هیڅ نه سوه په جوړه په دغه جنګ کې بلوڅان د میرویس خان ملګري وه او کیخسرو ووژل سو . په دسمبر ۱۷۱۱ ع کي د ایران څواکونه بیرته په ماته ولاړه او عبدالله خان صفا ته ولاړی . اوس نو سلطان عبدالله خان خپل غښتلی زوی سره د یوه زورور لښکره هرات ته د نیولو له پاره ولېږه. افغانانو په ۱۱۲۴ هـ /نومبر ۱۷۱۲ ع کې د هرات پر قلعه حمله وکړه، او ایرانیانو ته یې ماته ورکړه، ایرانیان په تېښته مجبور سوه او اسدالله خان پر هرات قبضه وکړه . سلطان عبدالله خان سمدستي هرات ته راغی او په هرات کې یې د خپلې پادشاهی اعلان وکړ . دا په تاریخ کې لومړی ځل و چې افغانانو د خپلي بقا او آزادی جنګ وکړ .

**د سلطان عبدالله خان سدوزي پاچهي او د افغانانو بشپړه خپلواکي**

سلطان عبدالله په ۱۷۱۲ ع کې د خپلې واکمنی باقاعده اعلان وکړ . د شاه لقب یې غوره کړ . د خپل نامه خطبه او سکه یې رواج کړه . د افغانانو د دغسې فتحې وجه که څه هم و یوې خواته د صفوي پاچا حسین کمزوري تاریخي کردار او عیش خوښونه وه خو و بلې خوا ته یې سوب د افغانان غیر تمندي او د مېړاني ولولې وې . افغانان چې یو نه ماتېدونکی قوت دی دوی به تر کومه د بل په واک کې پاتېدلای . د سووونو کلونو په دغه تاریخي عمل کې حتمي دوې په دې یوه سوه چې موږ تل مدام د بل د ګټو له پاره جنګېدلي یو او تر څو به د بل له پاره جنګیږو او موږ ته د خپلو خانو د آزادی، خپلواکي او سلامتیا له پاره مېړانه په کار اچول دي نو کله چې دوی په دې خبره پوه سول نو دوی په زړه او دماغ دا ومنله، نو یې د ایرانیانو د محکومی طوق له غاړې وایستلی او تر پښو لاندي یې ومروړی .

**د یوه خپلواک هیواد افغانستان تشکیل**

د ایران څخه افغانستان خپلواکي تر لاسه کړه. د افغانستان په ختیځ کې په کندهار کې میرویس خان په ۱۷۰۸ ع کي خپل آزاد هیواد تأسیس کړ او په لوېدیځ کې یې په هرات کې په ۱۷۱۲ ع کې سلطان عبدالله خان سدوزي خپلواکي تر لاسه کړه . د دې څخه د درو کالو په لنډ وخت کې اسدالله خان د غور، سرحدات، مرغاب، بادغیس، قلعه او ښار او د فراه سیمي فتح کړې دا د یوه آزاد او بشپړ خپلواک افغانستان پر لوري غوره ګامونه وو چې پورته سوه . په پای کې په ۱۷۴۷ ع کي احمدشاه بابا و افغانستان ته یوه بیخي خپلواکې بڼه وروسپارله . دا ډول یو خپلواک افغانستان د افغانانو تر بیرغ لاندي په مېړانه او همت سره په وجود راغی .

**یوه بله تاریخ پېښه ولي په خیر پای ته ورسېده؟**

ابدالي مشران لوستي د ذوق څښتنان او د کلتور خاوندان لیري کتونکي وه . چې دغه کچه په غلزیو کې کمه وه څکه خو هغه تولنیز نتایج نه سوه تر لاسه او پښتانه واړه د ایرانیانو پر ضد یو موټي نه سوه، دغه راز د نادرشاه د

وژل کېدلو پس مېړنی او لوړ حوصله د غیرته ډک افغان احمدشاه ابدالي دوی واړه یو وار بیا سره راټول کړه او د لوړو اهدافو پر لور یې وخوځول .

میرویس خان په ۱۷۱۵ ع کي په حق ورسېدی. د ده ورور عبدالعزیز خان مشر توب تر لاسه کړ . ده د ایرانیانو سره روغه وکړه . خو غلزیانو قبوله نه کړه . د میرویس خان زوی محمود غلزي سر واخیستی. عبدالعزیز خان په کندهار کي ووژل سو او محمود غلزی د اتلسو کالو په سن په ۱۷۱۷ ع کي د کندهار په قلعه کي د سرداری پر منصب کښېناستی . هم په دغه کال کي غلزیانو. ابدالیانو او ایرانیانو د افغانستان د واک اخیستلو له پاره په هڅو بوخت پاته سوه . په دغه حال کي عبدالله خان هرات ونیوی او دالته یې خپل دارالخلافت جوړ کړ . د هرات تر نیولو پس ابدالیان هلته ورغله .

**د محمود غلزي حکمراني**

محمود غلزي ابدالیان پر شا نه راوستل . خو د ده ناکردي تر سهلو تیري سوې افغانانو او ایرانیانو د ده څخه کرکه پیل کړه . ابدالیان تهذیب پېژندونکي او علم پېژندونکي وه او د ظلم او تېري خلاف وه . محمود غلزی په ۲۸ جنوري ۱۷۲۲ ع ایراني صفوي لښکرو ته د اصفهانه څخه لس میله لري د گلناآباد پر ټاپو باندي ماته ورکړه. اصفهان یې ونیوی او سلطان حسین صفوي یې بندي کړ . په دغه لوی جنگ کي اتیا زره ایرانیانو ژوند د لاسه ورکړ .

د دغه جنگ تاریخي ارزښت

د دغـه جـنگ تـاریخي ارزښت دا وچـي د صـفوي ټولواک پر ضد افغانانو ته په لومړي ځل یوه لویه سوبه تر لاسه سوه. اصفهان ښېر میاشتي محاصره و. دوی ته کومک ته ور رسېدی نوا ایرانیانو سپي، پشیاني، آسان او د ونو بلگونه خوړل پیل کړه. په زرو خلک له لوږي مړه سول. په ۲۵ اکتوبر ۱۷۲۲ ع محمود غلزي خورا په تک سر او هسکتیا سـره اصـفهان تـه ور ننـوتی . دري زره امـرا او د شـاهي خواکونو نفر یې قتل کړه . دغه قتل عام د خپل منځي دښمني نتیجه ده .

شـاه حسـین صـفوي یـې زنـداني کـړ او ده پخپلـه د اصفهان په مرکز کي د دولت مشر توب پر غاړه واخیستی. خپل کشر ورور حسین غلزی یې په کندهار کي حاکم کړ . په دوي میاشتي کي ده دومره تېری وکړ آخر یې ماغزه خراب سوه نتیجه دا سوه چي افغانستان په دوو برخو ووېشل سو .

د غلزیانو نیولي سیمي د کندهار ختیځه سیمه قلات. غلزي. غزني. کابل. جلال آباد او د بلوچستان افغان سیمي وي. ابدالیانو بیا فراه. صفا او هرات نیولي وه . ایرانیان په بشپړه توگه د زوال سره مخ وه. هلته د علم د مخنیوي له پاره د غلزیانو پخپله محمود ته مخ ور وگرځاوه محمود یې بند کړ او د اشرف د عبدالعزیز خان زوی یې په ۲۶ د اپریل ۱۷۲۵ ع پر تخت کښېنوی . د شاه لقب یې ورکړ، خو شاه اشـرف هـم د خپل پېشني په ډول ظالم وختای. ده پخپله غلزیان چي د محمود سره نیتي به وه وژل پیل کړه او په ۱۷۲۶ ع کي یې صفوي ټولواک حسین وواژه .

**د افغانانو او ترکانو تر منځ نښته**

په دې وخت کي عثماني خلیفه د صفوي تاجدار په حمایت د ترکانو یو لښکر راولېږی . د افغانانو او ترکانو تر منځ دغه جنگ په ۲۵ نومبر ۱۷۲۶ ع د همدان په خرمه سیمو کي وسو . په دغه جنگ کي ترکان د ماتي سره مخامخ سول او په تېښته مجبوره سوه . نتیجه دا سوه چي عثماني خلیفه په ۱۷۲۷ ع کي شاه اشرف غلزي په رسمیت وپېژندی . په ځواب کي یې شاه اشرف غلزي تر خلیفه د عالم اسلام مشر و مانه .

**د ابدالیانو او غلزیانو تر منځ بې خوندي او د نادر قلي خان افشار فتوحات**

په دغه وخت کي نادر قلي خان راپورته سو او د ایران د لښکر سالار سو . ده په ۱۷۲۶ ع کي سر واخیستی او مشهد یې ونیوی تر دې پس یې د ابدالیانو پر ضد د لښکر کښي پر ېکړه وکړه . دلته ابدالیان او غلزیان سره یو نه سوه د دغي بدخوندي څخه ایرانیانو استفاده وکړه دوی یې د ماتي سره مخ کړه . د نادرقلي سره بخت یاري وکړه. چي افغانان په خپلو کي سره لاس و گرېوان وه او دا ډول یې د ایران سره سره پر افغانستان باندي بشپړه قبضه وکړه .

په ستمبر ۱۷۲۹ ع کي اشرف غلزي ماته وخوړه. د اصـفهانه راوغورځېدی او د غلزیو تر قلاته یې خان راورساوه . په کندهار کي د محمود کشر ورور حسین حکمران و. هغه د اشرف د نیولو امر وکړ . د حسین غلزي لښکرو په قلات کي د اشرف غلزي د لښکرو سره پنجه بنده کړه . په دغه جنگ کي اشرف ووژل سو او واړه شرقي افغانستان د حسین غلزي تر ولقه لاندي راغی . دوی د نادر قلي افشار واکمني ومنله او تر دې پس نادرقلي د ابدالیانو پر ضد د هرات پر لور پیش قدمي وکړه .

**سلطان عبدالله سدوزی د هرات حاکم**

یوې بلې تاریخي نکتې ته دي ستاسي فکر وي چي په نومبر ۱۷۱۲ ع کي سلطان عبدالله سدوزي د ابدالیانو مشر پـر هـرات بانـدي تـر واکمنـی پـس د خپـل نامـه سـکه راوایسته . د عبدالله خان څلور زامن وه : اسدالله خان، محمد خان، الله یار خان او علي یار خان . مشر زوی اسدالله خان د پلار سره په هرات کي و هغه نور دري یې نیکه سلطان حیات خان سدوزي ابدالي سره په ملتان کي اوسېده . هرات د ابدالیانو دارالخلافه وه او د صفا او فراه څخه د ابدالیانو ډېري کورنۍ هرات ته ورغلي وې .

**د ابدالیانو تاریخ جوړونکی مېړانه او د اېرانیانو عبرتناکه ماته**

هلته اېرانیانو وار په وار پر هرات باندي بریدونه کول، لاکن هر وار به ماتېدل تر څو اېراني سپه سالار قلي خان صوفي سره د ډېرشو زرو تکړه لښکره تر بیخي زیاتي تیاري پس د هرات د نیولو له پاره را رهي سو، د اسدالله خان لښکر په ۱۷۱۹ ع کي د قلعې دباندي اېرانیانو ودراوه او یو زورور جنګ پیل سو. ابدالیانو ډېره مېړانه او شجاعت ښکاره کړ . آخر ابدالیان سوري سومبري په تېښته مجبور سول .

**د غلزیانو او ابدلیانو منځنی بدخوندي**

دغه کامراني پر غلزیو بسه ونه لګېده، په ۱۱۳۳ ه / ۱۷۲۰ ع کـي یې پـر صـفا او ارغـان بانـدي یلغـار وکـړ . ابدالیانو ته یې ماته ورکړه، سیمي یې خیني ونیولې د یوه لوري اېرانیانو او د بله لوري غلزیانو په کندهار کي د سیسي جوړولې . سلطان عبدالله او د ده زوی اسدالله خان د ده مقابلې ته ولاړ وه . آخر سلطان حیات خان خپل زوی عبدالله خان ته د غلزیو سره د ښتو امر وکړ .

هلته اسدالله خان د ډېرشو زرو لښکرو سره پر مخ را رهي سو د فراه و لوري ته . قلعه یې ونیوله . ارغان او نوري سیمي یې بیرته د دوی څخه ونیولې . خپلو خلکو ته یې بیرته ورکړې او و کندهار ته پسي ور اوړېد سو . محمود غلزي جنګي چم وکړ چي پر خپلو کړو پښېمانه یم بیا به د صفا او ارغان په سیمو کار نه لرم خو اسدالله خان یې سفارت ونه مانه او ده ته یې پخپله د سلطان عبدالله خان څخه د بخښني امر وکړ . کني نو پر ېکړه به د جنګ پر ډګر کیږي .

تر څو په ذیقعده ۱۱۳۲ ه مطابق اکتوبر ۱۷۲۰ ع د فراه او کندهار په منځنی سیمه دل آرام کي د خاش رود پر غاړه یو زورور جنګ وسو د دواړو خواوو په زرو افغانان مړه سوه . اسدالله خان د ۲۶ کالو په عمر په دغه جنګ کي شهید سو . ابدالیانو میدان بایلوه د ځواني مرګ زوی پیښني او د لښکر ماتي د سلطان عبدالله خان پر زړه ډېر ویر راوستی . غلزیانو بیرته خپلې د لاسه ورکړي سیمي ونیولې او د فتحي نغارې یې ووهلې . نور یې داسي وکړه چي اېرانیانو له یې حال ور ولېږی چي راسئ چي په ګډه د ابدالیانو مخه ونیسو . اسماعیل خان سپه سالار د اېراني لښکر سره هم پر هرات ور رهي سو هلته سلطان عبدالله خان لښکر سره راټول کړی مخ پر مشهد ور روان سو . چي دوی په لار کي راوګرځوي . د هرات قلعه یې یې زمان خان د احمدشاه بابا د پلار په تحویل کي ورکړه او پخپله په چټکتیا ور رهي سو .

**د زمان خان بغاوت**

په جمادي الاول ۱۱۳۳ ه مطابق مارچ ۱۷۲۱ ع کي دواړه لښکره د مشهد دباندي سره مخامخ سوه . د دغه جنګ په مابین کي حال راغی چي زمان خان د خپلو څو ملګرو سره سر اخیستی دی او د هرات په قلعه کي قلعه بنده سوي دي سلطان په شنه زړه بیرته د هرات و لوري ته را رهي سو . اېرانیانو د اری وواهه چي سلطان لکه چي مات سو د فتح په خوشحالي کي د مشهد په قلعه کي قلعه بنده سو . عبدالله خان هرات محاصره کړ زمان خان د دغه هر څه د مخه ذوالفقار خان او علي مردان (چي د اولي ښځي څخه یې و) سره د خپلي دویمي ماندینې زرغونې الکوزی چي دا وخت امیندواره وه په حفاظت سره ملتان ته ولېږل . زمان خان د سلطان اخښی (باجه) و په کوچنیوالي دواړو د اشنایي لوري سره کولې د زمان خان د دغه سراخیستني علت د ده د دویمي ښځي پلار ګنی وه د زمان خان مور د ملتان په کړي شاه حسین ابدالي کي د خپل ورور جلال خان سدوزي په کور کي اوسېده . دلته په ملتان کي سلطان حیات خان په کړي کي علیحده اوسېدی . دی د سدوزو په خپل منځني رنجش او خانه جنګی ډېر زهیر سو . د څو ورځو تر محاصرې پس هرات ونیول سو . لاکن ابدالیانو ته بیخي زیات ځاني تلفات ورسېده . آخر زمان خان خالو خان الکوزی او نور دوه دري سوه عسکر ونیول سول او ووژل سول . دا پېښه په شعبان ۱۱۳۳ ه = می ۱۷۲۱ ع کي وسوه .

د زرغوني الکوزی په ۱۱۳۴ مطابق ۱۷۲۲ ع کي پاته په (۷۱) مخ کي
هلک وزېږېدی

ژباړونکی محب الله اسحاقي
دوولسم ټولګی ـ لومړی برخه

# حقوق او دندې

په تیرو ځیرکو کي مو ولوستل چي دولت و اتباعو ته د قانون په واسطه حقوق ورکوي او دندي ورته وضع کوي. تابعیت عبارت د دولت د حقوقو او دندو درلودلو څخه دی. د دولت مقصد هم و فرد ته د حقوقو او آزادی ورکول دي او آزادی ته د حقوقو او دندو په واسطه سره د حقیقت جامه ور اغوستل کېدای سي. په دې ځیرکي کي به د حقوقو او دندو پر مفهوم، معنی، څرنګوالي، ډولونو او د تبعي پر حقوقو او دندو باندي بحث وکړو.

**حق څه شي دی؟**

انساني فطرت دوه اړخه لري چي یو یې ذاتي یا شخصي او بل یې ټولنیز دی. په ذاتي یا شخصي توګه هر فرد غواړي چي کار او فکر وکړي یا څه وغواړي. دا د ده جسماني اړتیاوي دي چي هغه د ډوډی. کالو او کور په لټه کوي او د هغه جنس. کورنی او د ملګر تیا خصلتونه د هغه معاشر تي اړتیاوي دي لکه خواخوږي. مینه. نفرت او داسي نور چي هغه د نورو افرادو سره وصلوي.

د دې پر ته فرد علمي او ذهني. ثقافتي او نور تمایلات او ارادې هم لري. د دغه اړتیاوو او تمایلاتو د ارادو او پلانونو تر لاسه کولو یا بشپړولو له پاره فرد خپل کردار او ذهن ته وده او پراختیا ورکوي او خپل ګټې تر لاسه کوي. خو دا ټول هغه یوازي د نورو افرادو په منځ کي په اوسېدلو سره تر لاسه کولای سي. خو دا هم د نورو په خوښه او مرسته سره کېدای سي. هم داسي کله چي یو فرد غواړي چي څه وکړي یا یې تر لاسه کړي یا فکر پکښي وکړي نو دی د نورو سره اړیکو یا مرستي ته اړتیا لري. چي له دې کبله د حق او دندي تصور پیدا کیږي. نو حق د انساني ټولني زېږنده دی او د یوه ځانګړي ډول اجتماعي مرستي نوم دی.

حق عبارت د فرد د څه کولو یا د فکر کولو داسي ځواک یا اختیار یا ږغ څخه دی چي هغه یې د خپلو ګټو یا موخو د تر لاسه کولو له پاره کاروي چي ټولني یا دولت په رسمیت پېژندلي وي. ټولنه یا دولت دغه ځواک یا اختیار یا ږغ ځکه په رسمیت پېژني چي فرد خپل ژوند بسیا او خوشحاله جوړ او خپل ګټې او موخي تر لاسه او خپله سوکالي او خوشحالي زیاته کړای سي. چي بېله دې به یې ژوند نیمګړی او مشکل سي. که ټولنه حق په رسمیت پېژني نو دا ټولنیز حق بلل کیږي. که یې دولت پېژني نو قانوني حق ورته ویل کیږي. که یې د نورو خلکو ضمیر او نظر ر وپېژني نو اخلاقي حق ورته ویل کیږي. په سیاسي علم کي زیات پر قانون او ټولنیز حق باندي، او په اخلاق پوهنه کي پر اخلاقي حقوقو باندي بحث کیږي.

**څو مستند تعریفونه**

لاسکي حقوق داسي تعریفوي: "حقوق د ټولنیز ژوند هغه شرایط دي چي په عامه توګه بېله هغه هیڅوک خپل ځان ښه کولای نه سي".

هالینډ لیکي: "حق عبارت د یو چا د هغه صلاحیت څخه دی چي په هغه سره د نورو پر افعالو باندي د ټولني په نظر او قوت سره بر لاسه کېدای سي".

ولډ Wild لیکي: "حق د آزادی معقوله غوښتنه ده چي په هغه سره څه کېدای سي". ټي. ایچ. ګرین لیکي "حق یو داسي بلل سوی ځواک دی چي د عامه ښېګني له پاره مرستندویه ثابتېدای سي".

موږ حق داسي تعريفولای سو : حق عبارت د يوه داسي څواک، غوښتني يا اختيار څخه دی چي په هغه سره يو شخص يا ډله کوم داسي عمل کوي چي ټولني يا دولت هغه پېژندلي وي. څکه چي په دې سره گډ گټه يا ښېگڼه پيدا کېدای سي.

د پورته تعريفونو څخه دا څرگندېږي چي حقوق د فرد له پاره ضروري دي تر څو هغه خپلو گټي او مقاصد بشپړ کړای سي او خپل ذهن، کردار او شخصيت ته وده او د خپل ژوند له پاره غوره حالات او چاپېريال پيدا کړای سي. حقوق د ټولني له پاره هم ضروري دي څکه چي هغه د عامه گټو او گډو ښېگڼو او پرمختيا ضامن بلل کيږي. هغه په معاشري ژوند کي، اړيکي پرمختگ او خوشحالي زياتوي. هغه د دولت له پاره هم ضروري دي څکه چي د دولت حقيقي مقصد او غرض و غايت د حقوقو او آزادويو ساتنه او هغو ته وده ورکول دي. هغه حکومت چي و خپلو خلکو ته هر څوني زيات حقوق ورکړي هغوني ډېر به ديموکراتيک، خوشحال، پياوړي او د انصاف درلودونکي وي. د لاسکي په وينا : "د دولت پېژندنه د هغه په حقوقو کيږي چي هغه يې و خپلو اتباعو ته ورکوي".

**د حقوقو نظريې** Theories of Rights

داسي څو انسان د خپل پيدايښت څخه د حقوقو د تر لاسه کولو په لټه کي دی خو د حقوقو له پاره باشعوره او منظمه مبارزه او کوښښ د نوي عصر د لومړيو څخه پيل کيږي. مفکرينو د دې په تائيد څو نظريې وړاندي کړي دي چي دلته يې په لنډه توگه داسي بيانوو :

لومړی ـ د فطري حقوقو نظريه of Natural Rights Theory:

تر ټولو لومړی د فطري حقوقو نظريه ده. دا د نوي عصر په پيل کي د پاچاهانو د مطلق العنانه حاکميت پر خلاف وړاندي سول. د دې نظريې پر اساس انسان ته فطرت د لومړي ورځي څخه څو حقوق ورکړي دي چي د فطرت په حالت کي چي کله کوم دولت، قانون او پاچا نه وو انسان ته ور په برخه وه. چي د لوک په وينا دغه يې د ژوند، د آزادي، د خوشي او ملکيت حق ډېر مهم حقوق وه. د فطري حقوقو نظريه د ټولنيز ژوند د نظريې نه بېلېدونکې برخه وه. د دې نظريې له مخي دولت په دې شرط باندي په وجود راغی چي د فطري حقوقو په ښه توگه ساتنه وکړي او د دې تړون له مخي دا حقوق د انسانانو څخه بير ته نه سي اخيستل کېدای دې نظريې د فرانسي پر

انقلاب او د امريکا د خپلواکي د جگړي پر اعلانولو باندي هم اغېزه وکړه خو د نولسمي پېړۍ په پيل کي د فطري حقوقو نظريه نوره د منلو وړ نه وه. لومړی په دې نظريه کي د "فطرت" اصطلاح ډېره مبهمه او پېچلې اصطلاح ده. د تاريخ نه مخکي د فطرت د حالت تصور خو په قطعي توگه غلط او لار ورکوونکی دی. د "فطرت" معنی هم واضح نه ده. که فطرت "قدرت" تعبير کړو نو دا يو داسي مبهم قوت دی چي انسان واک نه پر لري. که فطرت انساني فطرت و گڼو نو دا په هر وخت کي بدلېدونکی دی. څيني مفکرين فطرت خودغرضانه او جابرانه قوت گڼي او نور مفکرين بيا فطرت سوله خوښوونکي، سوله يز او خواخوږي تمايلات بولي. يو بل نقص دا دی چي حقوق يوازي ټولنه او دولت ورکوي. د ټولني يا دولت تر مخه کوم داسي انساني حالت نه و چي فرد دي حقوق تر لاسه کړي وي. په څنگله کي په قوت سره هر څه تر سره کېدای سي. حق او انصاف د منظم ټولنيز ژوند عناصر دي تر څو پوري چي ټولنه اودولت نه وو نو د حق تصور هم ناممکنه و.

خو بيا هم په دې کي رښتينولي نغښتې ده. هغه دا چي په انسان کي دننه زيات قوتونه، صلاحيتونه او هيلي پټي دي چي د هغو د څرگندولو له پاره ټولنه او دولت بايد مناسبه زمينه مساعده کړي. حقوق عبارت د داسي مواقعو څخه دي چي دولت يې د هر فرد د فطري تمايلاتو او غوښتنو د څرگندولو له پاره ورکړي دي. نو له دې لحاظه د فطري حقوقو نظريه د انساني فطرت يوې مهمي غوښتني خواته اشاره کوي نو څکه خو لاسکي د فطري حقوقو دا نوې نظريه تائيد کړې ده.

**د حقوقو قانوني نظريه** Legal theory of Rights

د حقوقو قانوني نظريه د فطري حقوقو د نظريې برعکس ده. دا د ټولو تر مخه "بودان" او "هوبز" وړاندي کړل. خو د دې وضاحت جون آسټن او "د قانون پوهني تحليلي مکتب" کړی دی. د دوی په نظر حق فطرت يا قدرت نه بلکي دولت يا حاکميت و افرادو ته ورکړي دي چي د دوی په حکم يا قانون سره خلکو ته رسيږي. نو حق "يوه داسي غوښتنه ده چي دولت يې د خپلو محکمو په فيصلو باندي په خپل څواک سره ساتي". لهذا حقوق په انساني فطرت کي موجود نه وه. بلکي د دولت په قوت سره رامنځته سوي دي چي د دې مقصد له پاره دولت قانون جوړوي، حکم کوي، محکمې جوړوي او نظم

ساتونکي اداري پرانيزي . لهذا دولت په يوه وخت کي د حقوقو رامنځته کوونکی او نافذه کوونکی قوت دی . بېله دې حقوق تشي غوښتني دي يا د ځنګله هغه زور ازمايي ده چې "د زورور اوبه پر لوړه ځي" يا "زور حق دی" پر اصولو باندي فيصلې کيږئ . د دولت وجود د زورور منع کول او د کمزوره د حقوقو ساتنه او ملاتړ دی . بېله دې د فرد قوت يا اختيار حق نه سي ګرځېدای او د دولت د قوت له ملاتړ څخه پر ته د حق غوښتنه يو تش ډول دی .

**تنقيد:**

د مشارکت ملاتړي د حق پر قانوني نظريې باندي ټينګي نيوکي کوي هغه وايي چې دولت حق نه پيدا کوي بلکي حق خو په ټولنه کي رامنځته کيږي. هغه خو يې صرف په رسميت پېژني يا داسي چې هغه صرف قانوني بڼه ور کوي . کنې حق د پيل څخه په ټولنيزو اړتياوو او اړيکو کي وي . د دې تر څنګ حق د قانون نه بلکې د افرادو د ضمير او کردار څخه شروع کيږي . که د قانون نظريه په سمه توګه ومنل سي نو د انساني شخصيت کردار او بنياد به بې بنسټه وګرځي . د دې تنقيد باوجود. په دې نظريه کي صداقت سته . د دولت. د هغه د قانون او محکمې پر ته د حقوقو وجود نه پاته کيږي . خو بيا هم دا خبره رښتيا ده چې حق لومړی يوه اخلاقي غوښتنه او بيا وروسته قانوني حقيقت ګرځي .

**د حقوقو تاريخي نظريه** Historical theory of Rights

د تاريخي نظريې مطابق حقوق فطرت يا دولت نه دي پيدا کړي . دا د تيرو رسمورواجونو څخه راز ېر بدلي دي چې په خلکو کي دود دي . د ريچي په وينا : "حقوق چي کوم خلک تر لاسه کول غواړي په هغو کي د تيرو وختونو څخه د دې په اړه دود موجود و نو ځکه خو اکثره خلک د هغو حقوقو غوښتنه کوي چي د دوی د پلرونو او نيکه ګانو له وخته موجود وه. ځکه چي پخواني رواج قانون دی" .

په دې نظريه کي څه صداقت موجود دی . ډېر حقوق د رسم و رواج څخه اخيستل سوي دي . دا خبره په تېره زمانه کي ډېره منل کېده . په وروسته پاته ټولنو کي اکثره خلک د هغه حقوقو غوښتنه کوي چي د هغو مشران ځني برخمن وه او د زماني تغيراتو له منځه يووړه خو دا نظريه ډېر حقوق نه تشريح کوي . په اصل کي چي په اوسني عصر کي چي ژوند په ډېره بېړه بدليږي د تاريخي نظريې او دودونو پر اساس باندي د حقوقو غوښتنه نه سي وړاندي کېدای. هر نوی عصر نوي حقوق راز ېروي .

**د حقوقو عيني نظريه** Idealist theory of Rights

د حقوقو عيني نظريې ته د شخصيت نظريه هم ويل کيږي د دې نظريې له مخې حقوق هغه باندني حالات دي چې د فرد د دروني شخصيت او معنويت د پرمختګ او بشپړولو له پاره ضروري دي . د فرد اخلاقي پرمختګ د ټولنيز ژوند په هغه باندني حالاتو کي ممکنه کېدای سي چي په هغه کي فرد عمل کوي او بشپړ تيا تر لاسه کوي و دغه حالاتو او شرايطو ته حقوق ويل کيږي . پر دې سربېره حقوق يوازي په ټولنه کي وي ځکه چي په ټولنه کي د يوه فرد ښه والی د نورو په ښېګڼه کي نغښتی دی، هيڅوک په بېل اوسېدلو کي ښه کېدای نه سي . د دې تر څنګ دولت هغه حقوق ورکوي چي اخلاقي حقوق وي چي ټولنيزي ښېګڼي خپروي .

عيني نظريه په اصل کي د حقوقو پر اخلاقي اړخونو باندي رڼا اچوي او د هغه پر قانوني اړخونو باندي هيڅ رڼا نه اچوي . د دې نظريې مطابق حقوق پر اخلاقيت ولاړ دي نه پر قانون باندي او حقوق "د انسان د دروني پرمختګ باندي شرايط دي" څرګنده ده چي دا نظريه د حقوق محدوده تشريح کوي .

**د حقوقو د ټولنيز ښېګڼي نظريه** Social welfare of Rights

د ټولنيز ښېګڼي د نظريې پلويان حقوق په ټولنيز ښېګڼي او خدمت کي ويني . د دې نظريې مطابق انسا ته حقوق په دې واسطه ور کول کيږي چي هغه ټولنيز ښېګڼي او هوساينه زياته کړي او ټولنيزي چاري پر مخ بوزي . نو حقوق په ټولنيز توګه ضروري يا ګټور کېدای سي . و دې نظريې ته د يوټيليټارنيزم (هغه فلسفه چي په هر عمل او پر ېکړه کي د اکثريت ګټو ته ارزښت ورکوي) دوو سترو مفکرينو بينهتم او جون سټوارټ مل د ټولو تر مخه وړاندي کړې ده .

بينتهم وايي "فرد ته حقوق بايد هغه وخت ورکړه سي چي د ډيرو خلکو ډېره ګټه وي" . لاسکي دا نظريه داسي بيانوي چي فرد ته حقوق بايد د هغه ټولنيزو کارونو مطابقه ورکړه سي . هغه ليکي : "زما د حقوقو اساس دي پر هغو حقوقو باندي ودرول سي چي زما د کار اړيکي د ټولنيز ښېګڼي او هوساينې سره ساتي او کومي غوښتني چي زه لرم هغه صريحاً داسي غوښتني وي چي زما د عامه ګټو سر ته رسولو له پاره ضروري وي" . يا په نورو ټکو په ټولنه کي هغه حقوق پېژندل کيږي چي د عامه ګټو او ښېګڼو د ودې

له پاره مرستندويه ثابتېدای سي او د فرد هوسايني، خير او خوشحالي سره اړيکي لري . ځکه چي د ټولني خير او ښېګڼي بالآخر د فرد خير او ښېګڼي باندي ولاړي وي . د دې برعکس فرد د داسي حقوقو غوښتنه نه سي کولای چي د ټولني د خير او ښېګڼو خلاف وي .

د ټولنيز ښېګڼي په نظريه کي تر زياته حده پوري صداقت موجود دی . حقوق په ټولنيزو ښېګڼو سره په تعلق ور کولو سره دې نظريې د عيني نظريې په نسبت د شخصيت په اړه غوره نظريه وړاندی کړې ده . عيني نظريې شخصيت، يا کردار په ژوند کي يوه مقرره يا مستقل مقام ته منسوب کړي دي او په دې توګه يې شخصيت يو جامد او ساکن شي ګرځولی دی . د ټولنيزي ښېګڼي نظريه شخصيت و ټولنيزو دندو ته منسوبه وي او په دې توګه د هغه محرک او فاعلي تصور وړاندي کوي خو بيا هم په دې نظريه کي يوه نيمګړتيا سته دا د ټولنيزي ښېګڼي په اړه کوم معيار نه وړاندي کوي . ټولنه تل په طبقو باندي وېشلې وي او په کومه ځانګړې طبقه کي ښېګڼه او هوساينه عبارت د واکمني طبقې د ښېګڼي او هوسايني ځخه اخيستل کيږي . ښکاره خبره ده چي ټولنيز ښېګڼه هيڅ کله د ټولي ټولني د ښېګڼي ځخه نه ده . بلکي د کومي مخصوصي ټولني د خير او ښېګڼي ځخه ده .

**نتيجه**

د حقوقو په ځرنګوالي باندي مو ځو نظريې تر ستر ګو تيري کړې . په ټولو کي يوه هم پر دې نه ده توانېدلې چي د حقوقو ځرنګوالی دې په سمه توګه واضح کړي . خو په هر حال په هر يوه کي ځه نا ځه صداقت ضرور موجود دی د فطري حقوقو نظريه د انساني فطرت و ودي او غوړېدو له پاره حقوق لازمي بولي، تاريخي نظريه د حقوقو د لرغونتيا و خواته اشاره کوي او د ښېګڼي نظريه حقوق د ټولني د ښېګڼي او هوسايني سره تړي او په آخر کي په قانوني نظريه کي دا حقيقت بيان سوی دی چي حق په هر ډول چي وي ضروري دي . خو تر ځو پوري چي د حکومت د قانون او ځواک مرسته ورسره مل نه وي پاتېدای نه سي .

د دې مطلب دا دی چي حقوق لومړی اخلاقي تصوروي او وروسته قانوني حقيقت ګرځي . خو دا هله کېدای سي چي د حق له پاره ټولنيز ضرورت يا ګټه موجوده وي .

نور بيا . . .

**د کاکړو ټبر . . .**

پير محمد کاکړ

شمس الدين کاکړ

زرغونه کاکړه

عبدالحی حبيبي

دوست محمد کاکړ

عبدالعلي کاکړ او داسي نور په زرهاو ښځينه او نارينه عالمان، شاعران او ملي مشران په دې قوم کي تېر سوي دي او اوس هم موجود دي .



**د سدوزو تاريخ . . .**

چي نوم يې احمدخان پر کښېښود . د دغه يتيم ماشوم زېرمه تر اوو کالو پوري په ملتان کي د جلال خان سدوزي پر غاړه وه . ځوک خبر وه چي دغه يتيم ماشوم به يوه ورځ يو لوی تاريخي شخصيت جوړ سي او افغانان به واړه سره راټول کړي د يوه مضبوط افغانستان بنسټ به کښېږدي .

دغه راز د سدوزو کورني په دوو ډلو کي ووېشل سوې زياتره په هرات کي د سلطان عبدالله خان ملګري وې دلته د زمان خان د خواخوږو په زړونو کي د سلطان عبدالله خان په ضد کي کرکه زياتېده . د عبدالله خان د دوراندېشي په حالاتو پوهني دغه خبره درک کړه و خپل پلار ته يې ملتان ته ليک ور ولېږی چي زما دويم زوی محمد خان هرات ته راواستوه. لاکن هغه دې د کندهار نه بلکي د کابل له لاري هرات ته راسي .



## لنډۍ

چي د زړګي مينه يې نه وي
مين يې مه کړئ د ملا په تاويزونو

يار مي په ګلو کي بيده دی
د سپيني خولې شبنم به زه پر اورومه

خدايه ما ګل د بيابان کړې
چي د خپل يار په غېږ کي پاني پاني سمه

يو مړاوی ګل په لار کي پروت وم
اشنا په سرو منګولو جګ کړم تازه سومه

د ګلو ډک اوربل پرې ټيټ کړه
که شېرين يار پر ځکندن وي روغ به سين

ژباړه او زیاتونه : عبدالتواب بالاکرزی

# د حضرت محمد ﷺ خرقه

# په کندهارکي

**خرقه شریفه او موی مبارک**

د کندهار لرغوني او تاریخي ښار په خپل غېږ کې د دوو لوی زیارتونو د درلودلو ویاړ لري. دغه دوه لوی زیارتونه عبارت دي له خرقې شریفې او موی مبارک د زیارتونو څخه .

کله چې په کال ۱۳۲۵ ق کې امیر حبیب الله خان د دغو ددوو زیارتونو د درناوي او زیارت کولو له پاره کندهار ته راغلی و نو یولړ د رغوني کارونه یې هم تر سره کړل . ښاغلي میر محسن آغا د ده د دغو چوپړونو په هکله لیکي چې : د سراج الملت و الدین امیر حبیب الله خان د راتګ د پیل څخه یولړ د رغوني او پرمختګ نښې تر سترګو سوي دي او د دوی د چوپړ ستاینه یې کړېده. کوم چې د دوی مینه د خپل وطن سره څرګندوي . ښاغلي میر محسن آغا لیکي چې د دوی د هڅو په لړ کې د کندهار ښار کلا چې د وخت په تېر بدو سره یې ځای ځای نړېدلی او د بارانونو له امله شوږېدلي وه د سره بیا ورغول سوه چې ښار ته یې زیاته ښکلا وبخښل . د ارګ ماڼۍ او سلام خانه او په هغې کې یې د اوبو فوارې او ګلدانۍ جوړې کړې. د ښار د بازارونو و نظم او ترتیب ته یې ځانګړې پاملرنه وکړه چې د ښار ښکلا یې څو چنده کړه .

د سپېڅلو ځایونو او زیارتونو په برخه کې یې د خرقې شریفې د زیارت و ختیځ لوري ته سرای رانیوی او هغه یې د خرقې شریفي د زیارت په انګړ ورګډ کړ او هم یې د نوموړي زیارت سهېل لوري ته دالانونه جوړ کړل او د خرقې شریفي له پاره یې امام. موذن او مدرس مقرر کړل .

شاه جامع چې د لوی احمدشاه بابا په وخت کي جوړه سوې وه. دوی یې شمالي لوري ته خالصه مځکې رانیولې او هغه یې د جامع په انګړ ورګډې کړې او د هغې انګړ یې پراخ کړ او هم یې شمالي خواته دالانونه پکښې جوړ کړل .

د سردار کهندل خان د جامع (اوسنی موی مبارک جامع) شمال او سهېل لورو ته سرایونه یې په ډېر ګرانه بیه رانیول او هغه یې د جامع په انګړ ور ګډ کړل چې د پخوا په پر تله دوه برابره لو سوه او هم یې د پاتاو واله په منځ کې راوستل او دوه سوه دوکانونه چې یو بازار ګوڼې ځنې جوړیږي هغه د همدې جامع د لګښتونو له پاره جوړ او د موی مبارک د جامع جومات له پاره یې په جامع کې دننه ځانګړی ځای جوړ کړ . همدا راز د ښکارپر بازار د عثمان آباد مسجد (            ) او یولړ نور مسجدونه یې ورغول . د اوسني هلمند ولایت د نهر سراج واله یې د څلورو کلونو په موده کي چې د اتو زرو کسانو په شاوخوا کې مزدورانو هلته کار کړی دی وکښل سوه . نوموړې واله د هغه د واکمنی یو له لویو خدمتونو او د امیر حبیب الله خان د ننګرهار سفر پایلي وې چې تر اوسه پوري پاته دي .

د دغو ټولو چارو پرمختګ او سمون د دوهمي درجې سردار ښاغلي نائب سالار محمد عثمان خان په هڅو مخ ته

وړل کېدې . امیر حبیب الله خان د کندهار تر سفر (۱۳۲۵ ق، ۱۲۸۶ ل ۱۹۰۷ م) وروسته هرات ته ولاړ چې د ده دغه سفر تر ۱۳۲۶ ق پورې دوام درلود .

### د موی مبارک مسجد جامع

موی مبارک په کندهار کې په دوو مسجد جامعو کې ایښوول سوې ده او دواړه مسجدونه د موی مبارک په ویاړ په همدې نامه یادیږي . لومړی مقام یې د کندهار زړه جامع وه او دوهم مقام یې د سردار کهندل خان مسجد (اوسنی موی مبارکه) ده . زړه جامع چې د اشرف البلاد کندهار لومړنی مسجد دی د لوی احمدشاه بابا په حکم کله چې دی خپله په لاهور کې و په کندهار کې د دغه د نائب سردار عبدالله خان دېوان بیگي پوپلزي له خوا په ۱۱۷۲ ق کې چې د لوی احمدشاه بابا د واکمن کېدو د دیارلسم کال سره یې سمون درلود جوړه کړه او کله چې په ۱۱۸۲ ق کال کې خرقه شریفه اشرف البلاد ته راوړل سوه د موی مبارکې سره په یوه حجره کې کېښېښوول سوه او کله چې تېمور شاه د خرقې شریفي له پاره نوې ودانۍ جوړه کړه خرقه شریفه یې هلته په ډېر عزت او درنښت سره انتقال کړه او موی مبارکه د امیر حبیب الله خان د واکمنی تر وخت پورې هلته پاته وه چې په همدې ویاړ نوموړی محل د موی مبارکې په نامه سره یادیږي . سردار محمد عثمان خان (۱۳۰۸ ل مړینه) د امیر حبیب الله خان په واکمنۍ کې موی مبارکه د زړې جامع څخه د سردار کهندل خان مسجد ته په ډېر عزت او درنښت انتقال کړه چې اوس هم هلته ده .

### د خرقې شریفې د زیارت د ودانۍ نقاشي

کله چې د خرقې شریفي د زیارت ودانۍ د سراج الملة والدین امیر حبیب الله خان په حکم د سره ورغول سوه د زیارت د لا زیات سایست په خاطر امیر لارښوونه وکړه چې نوموړې عمارت باید رنگ سي او د نقاشۍ په ښایسته هنر دې ښکلې سي. د کار د چټکتیا له پاره یې ځینې نور اهل کسان هم د هرات څخه راوغوښتل تر څو د خرقې شریفي د زیارت او د کندهار د نورو سپېڅلو زیارت ځایونو په رغونه او ښکلا کې خپل هنر وکاروي .

صوفي عبدالحمید[1] د نصرالله خان بارکزي زوی د کندهار د چار کوځې اوسېدونکی چې په ۱۳۲۷ ق کال د هرات څخه راوغوښتل سو او د خرقې شریفي او موی مبارک د زیارتونو دننه یې د رنگ او نقاشۍ چارې تر سره کړې او هم یې ځینې تاریخي لیکنې پر کړې، د خرقې شریفي د زیارت د ودانۍ په چت کې یې لیکلي :

اینجا بیا که روضه خرقه محمد است
اینجا بیا که نور نفیس جلوه میکند

### د سپینو زرو د دروازې هدیه

هغه دروازه چې د خرقې شریفي په عمارت کې دننه موقعیت لري پخوا د لرگو[2] څخه جوړه وه . د سراج الملت والدین امیر حبیب الله خان په واکمنۍ کې دغه دروازه د سپینو زرو څخه جوړه سوه چې تقریباً دوه متره جگوالی او یو متر و پنځه ویشت سانتي بر لري . د مرحوم سردار شېردل خان لویناب د زوی سردار خوشدل خان لویناب (د کندهار نائب الحکومه و) له خوا ډالۍ سوه او دغه لیکنه پر لیکل سوې ده :

(نائب الحکومه اشرف البلاد قندهار تقدیم شد ۱۳۳۶ ق)

بضاعت نیاوردم الا امید
خدایا زعفوم مکن نا امید

---

[1] صوفي عبدالحمید چې په صوفي هراتي سره مشهور دی اصلاً د کندهار دی. دا چې دی په هرات کې اوسېدلی دی خلکو به هراتی صوفي باله. نوموړی په ۱۳۰۷ هـ ق کال په کندهار کې زیږېدلی او په ۹ کلنۍ کې د خپلي کورنۍ سره هرات ته ولاړ. هلته یې ریاضي. طبیعي علوم. هندسه. جغرافیه. تاریخ او د ستورو پېژندنه د ځانگړو استادانو څخه زده کړه.

په کال ۱۳۲۷ ق کې د هرات څخه د افغانستان د امیر په حکم کندهار ته راوغوښتل سو د خرقې شریفي پر نقاشۍ برسېره یې د کندهار د ځینو نورو زیارتونو او د منزلباغ د مهندسۍ چارې هم تر سره کړې. په کال ۱۳۳۲ ق کې کابل ته وغوښتل سو. په کال ۱۳۴۳ ق کې یې د افغانستان د شمالي ولایتونو د جغرافیې کتاب ولیکی او په کال ۱۳۴۴ ق کې د "تعدیل صنایع" د شرکت د رئیس په توگه وټاکل سو وروسته په کال ۱۳۴۵ ق کې یې د مطبعې او صکوکو د رئیس په توگه دنده اجراء کړېده.

[2] د ۱۳۴۱ ل کال د وري په میاشت کې مې د خرقې شریفي د متولي محمد حق اخوندزاده څخه وپوښتل چې وروسته تر دې چې د سپینو زرو دروازه نصب سوه د لرگو پخوانۍ دروازه یې څه سول؟ هغه په ځواب کې راته وویل چې کور ته مې وړې ده او په یوه ډېر مناسب او پاک ځای کې مو نصب کړې او ساتلې ده.

"وکیلي"

پورتنی لیکنه مې د جمعې په ورځ د غرمې پر یوولس بجو باندې د ۱۳۴۱ لمریز کال د وري د میاشتې پر ۳۱ مه ولیکل . "وکیلي"

۱۳۳۶ ق د ۱۲۹۷ ل کال سره سمون لري او د همدې کال د کب په میاشت کې افغانستان خپله بشپړه خپلواکي اعلان کړه .

## د سولې په لاره کې خدمت

د بشپړې خپلواکۍ د بیرته اخیستلو د اعلان په پیل کې (د ۱۲۹۷ لمریز کال د کب میاشت) د افغانانو د سوکالۍ، نېکمرغۍ او خوشحالۍ دښمنانو په افغانستان کې د لاس وهنې په نیت په داسې وخت کې چې د احمدشاهي کندهار د ښار او شاوخوا سیمو ځخه پښتانه د جهاد او غزا او د هیواد د پت او ناموس د ساتنې په نیت د افغانستان د پولو پر لوري روان وو د کندهار په ښار کې یوه ډېره د خطره ځخه ډکه پېښه رامنځته سوه هغه داسې چې :

د کندهار د یو سني مذهبه سید چې ډېر وخت یې د خپلواکۍ د لاسته راوړنې په هکله د جهاد تبلیغ کړی و او خلک یې د خپلواکۍ بیرته اخیستنې ته راپارول د هغه زوی د افغانستان د خپلواکۍ د دښمنانو له خوا په شهادت ورسېد او هغه یې په ښار کې په داسې توګه ښخ کړی و چې پښه یې تر ځنګې دباندې راوتلې وه . دغه خبر بیا هم د هیواد د دښمنانو له خوا په سپین بولدک کې و مجاهدینو ته ورسول سو چې تاسو د خپلواکۍ جهاد پیل کړی دی او ستاسو کورنۍ دښمنانو ستاسو اهل سنتو اولادونه په شهادت رسولي دي .

د دې غمجنې پېښې د خبر پر بنسټ چې د لویناب سردار خوشدل خان دواکمنۍ وخت و، مجاهدین د سپین بولدک ځخه بیرته کندهار ته راستانه سول او په کندهار کې ډېر کسان په دې پېښه کې ووژل سول . دا پېښه اصلاً زموږ د هیواد د خپلواکۍ د دښمنانو له خوا په دې خاطر چې مجاهدین د سپین بولدک ځخه بیرته پر شا سي او دوی یې د تورو د سیوري ځخه وژغورل سي په لاره اچول سوې وه، د خرقې شریفې د متولي حاجي عبدالحمید اخوندزاده په منځګړیتوب هغې ته د پای ټکی کښېښوول سو. په دې توګه حاجي عبدالحمید اخوندزاده د سولې په لاره کې نه هېرېدونکی خدمت وکړ او د افغانانو د خپلواکۍ د دښمنانو و فتنې ته یې خاتمه ورکړه، د ده سره په دې هلو ځلو کې نور عالمان هم ملګري وه . وروسته تر پېښې دا جوته سوه چې په نوموړې پېښه کې بهرنی لاس وهنه وه. تر ځو په داسې یو حساس وخت کې د افغانانو دغه ملي هڅه د ناکامۍ سره مخ سي .

د خرقې شریفې په تاریخ کې د نوموړې موضوع راوړل له دې سببه وه چې مرحوم عبدالحمید اخوندزاده په نوموړې پېښه کې په صداقت او اخلاص سره و خپل وطن ته خدمت وکړ او د دښمن هیلې ناتمامه پاته سوې .

نور بیا . . .

احمد صمیم

## د ایمان یو شرط

په قرآن او حدیثو باندې یوازې د خولې استناد کول د یو چا د مؤمن والي له پاره کافي دلیل نه سي ګرځېدلای تر ځو چې د هغه په شخصي ژوند، اقتصادي ژوند، کلتوري ژوند او سیاسي ژوند کې سم سهي ظهور ونه کړي

یوازې عنواني کلمه ویل یا فرمایشي ساختګي لمونځ کول په نمایشي ورځ کې د مسلمانۍ منطق نه سي ګرځېدلای په داسې حال کې چې نوري خبري یې، نور ناڅېد یې، نور اعمال یې غیر اسلامي وي

دا خلک قرآن او حدیث په خپلو عینکو کې تفسیروي، که یې عینکي سرې وې سره جلوه ورکوي که توري وې توره جلوه ورکوي، که زرغونې وې زرغونه جلوه ورکوي

د ایمان یو شرط دا دی چې سړی به حلال حلال بولي، حرام به حرام بولي یو څوک چې پر خپلو غیر اسلامي اعمالو باندې توبه کاږي نو داسې به وایي چې زموږ ایډیالوژي سهي نه ده زموږ "ایزم" غلط و زموږ نظریه جعلي وه نه دا چې یوازې پر اشخاصو او نظام نیوکه وکړي او خپله مفکوره پټه کړي او په پټه یې بیرته سهي وبولي، نه بلکې په ډاګه به دا اعلانوي چې زموږ فلانکی ایزم غلط و، او زه ځیني توبه ګار یم بیا به یې نو خلک ورسره ومني چې دا په رښتیا سره مسلمان سوی دی

# د میوند فاتح

لیکوال: محمدعلي

ژباړونکی: عبدالنافع ثنا



**د ژوند لومړنۍ ورځې**

سردار محمدایوب خان چې د میوند د فاتح یا افغان پرنس چارلي په نوم نړیوال شهرت لري، د لوړو ژورو څخه ډک ژوند لري. تر دې چې د هغوی د ژوندانه یو ناسپړلي اوځاره برخه افسانوي غوندي ښکاري، حال دا چې هیڅ یو افغان جنرال یا قومي مشر کوم چې د افغان ـ انګلیس په دوهمه جګړه (۱۸۸۱ ـ ۱۸۷۸ م) کې یې برخه اخیستې وي د ده غوندي نوم و نه ګاټه او نه یې هم تر هغوی څلانده رول ولوباوه.

زموږ د دې سردار نوم او شهرت د وخت په تېر بدو او سختو ګوتنیونو سره سره لا اوس هم د خلکو په یادونو کې تازه دی او تر نن ورځې د ده تر هیواد سربېره په نړیواله سطحه هم یو پېژندل سوی شخصیت او تلپاتې انسان دی. د ده د ژوند کیسه د زیاتو سوبو او ناکامیو، خوښیو او غمونو څخه ډکه ده، یوه روځ لوی لښکر ورپسې درومي او بله روځ یې په پردي هیواد کې پناه اخیستې وي. زموږ د دې لوی سالار د ژوند اهمیت په دې حقیقت کې نغښتی دی چې نه خو یې بري په سر کې غرور راوستی او نه هم په ناکامي کې مایوسه سو، دا یې د هیواد سره د زړه له کومي مینه وه چې دی بیا او بیا راوپاڅېد او د هیواد د غلیمانو سره وجنګېد، تر داسې اندازې چې په دې لار کې یې د خپل سر او مال هیڅ باک نه درلود.

سردار ایوب خان د افغانستان د واکمن امیر شېرعلي خان (۱۸۷۹ ـ ۱۸۶۳ م) پنځم زوی و، چې په ۱۸۵۷ م کال په کابل کې وزېږېد، د ده مور د مومندو د یو بارسوخه شخص د لال پوري د خان سعادت خان نامي لور وه. دی د یعقوب خان سکه ورور و، تر اوسه هم زموږ د دې نامتو سردار د ژوند لومړۍ شپې او روځې هم نه دي روښانه، ویل کیږي چې په کوچنیوالي کې تک ژړ او تل ناجوړه و چې په دې به یې مور او پلار چې د ده سره یې ډېره مینه لرل همېشه خواشیني وه.

د کورنۍ جګړې پر مهال (۱۸۶۸ ـ ۱۸۶۳ م) کله چې کابل د افضل خان (د عبدالرحمن خان پلار) لاس ته ورغی، وروسته بیا د ایوب خان (د افضل خان ورور) لاس ته ولوېده، ایوب خان د خپلي مور سره په ښار کې اوسېدی او په پخوانۍ دودیزه زده کړه بوخت و، کله چې مور د ده ژوند په خطر کې ولید، لومړی یې دی د یو ستر روحاني شخص سید اشرف په واک کې ورکړ خو ایوب هلته ډېر تم نه سو او اړ ایستل سو چې د کابل د یو قناد تاج محمد په کور کې پناه واخلي.

د ایوب لومړنیو زده کړو هغه ته کومه ګټه ونه کړې. کله چې دی په اېران کې له سره زده کړې ته جدي سو نو د دې جوګه سوی د فارسي، پښتو او انګلیسي لیک لوست وکړای سي. د دې حقیقت په روښانه کولو سره چې هغه د علم له زده کړې سره ډېره لږ مینه لرل او ډېر یې د کوڅې په لوبو کې علاقه درلوده، دا ځکه چې ایوب لومړی یو جنګیالی مېړه و او ورپسې بر هر څه. په ورکتوب کې به یې ماینونه الوزول، د کوچنیانو د لوبو په ټوپکانو به یې ټکان

کول، جعلي جګړې به يې کولې او د يرغل مشري به يې کوله .

پوځي زده کړه د ده له پاره ډېره بشپړوونکې او پر زړه جوړه وه، د کورنۍ جګړې پر مهال چې پوره پنځه کاله يې په بر کې ونيول ايوب خان د خپلي مور سره په کابل کې اوسېدی او تل به په دې وېره کې و چې وبه نيول سي او زنداني به کړل سي . کله چې په ۱۸۶۸ م کابل ته بريالی راستون سو او خپل شخصي زړه ورتوب او ډېر کوښښ په مټ يې خپل واک بيا برحاله کړ نو يې دا له اوږدې مودې هېر سوی ماشوم راپورته کړ او ايوب خان يې چې هغه مهال يوولس کلن و د جلال آباد د والي په توګه وټاکه . تر هغه لږ موده وروسته کله چې شېرعليخان خپل تر ټولو ګران زوی عبدالله جان د ځان د ځای ناستي په توګه وټاکه نو يې د مشر خو تر ټولو وظيفه نه پېژندونکي زوی يعقوب خان سره اړيکي خرابې سوې. دې کار د ايوب پر مقام اثر وشيندی که څه هم ايوب خان د شخړې يو اړخ هم نه و خو له خپلي دندې څخه ګوښه کړل سو ، د جلال آباد څخه دوباره کابل ته وغوښتل سو ، څکه چې يعقوب خان د ايوب سکه ورور و .

يوه ورځ کله چې ايوب پر يو ترکمنی آس سپور و، وليدی . امير وويل : "وګوره ! چوغکه پر جګ دېوال کښېنسته، دا د ايوب د زده کړې وخت دی نه د دې چې په ايله شيانو وخت تېر کړي " .

ايوب ته د پلار دغه بدخونده خبري د هغه د ياغي ورونو له وجې وې کنه ايوب پلار ته د ګيلې ځای نه و پرې ايښی، تر دې خبرو وروسته د برتانوي جاسوس نواب عطاء الله خان له خور ورته وويل سوه چې پلار يې پټېلې ده چې د ستر ګو د ديد څخه يې محرومه کړي، څکه نو ايوب په زغرده ياغيتوب پيل کړ ، په دې خيال چې هرات په يوه خپلواکه اداره واړوي نو يې د دوو مياشتو وروسته د عطاء الله خان په ملتيا د شېرو زرو غير منظم عسکرو سره هرات ته په بغاوت ولاړ ، ايوب له قلعه قاضي څخه خپل پلار ته يو خط وليکی او د ۱۲۸۰ هـ کال د جمادي الثاني پر ۵ مه نېټه يې چې د جمعې روځ کېده د خپل پالندوی لالا حيدر په لاس يې ورته راولېږی :

زما سره کېدونکي چلند زه مايوسه کړی يم، نو تښتم. د خدای ﷻ او د هغه د پيغمبر محمد ﷺ د نامه روی نيسم چې په ما پسي را ونه خوځېږې، که چيري داسي وکړې نو بده پايله به يې ووينې .



يقين لرم چي که يو نامردانه او غلط کار نه واي ما به لا وار د وار د مخه ارگ نيولی وای او ته به مي دستگيره کړي وای، که د دې سره سره بيا هم سر ټمبگي وکړې ناکامي دې باوري ده .

کله چي امير دا د سپکاوي څخه ډک ليک تر لاسه کړ له قهره ترله ووتی سمدستي يې اقدام وکړ او د خپل سپاره لښکر نه يې دوه کنډکه د تښتېدلي شهزاده د لټون او نيوني په موخه وگمارل، له بده مرغه د دې پيښې په رامنځته کېدو سره ايوب د خپل پلار سره په جگړه کي ښکېل سو او د هغه د خوشحالولو ټول چانسونه يې د لاسه ورکړل چي د عبدالله تر مرگ وروسته به يې يقيناً دی خپل ځای ناستی ټاکلی وای، شېرعلي خان د خپل ياغي زوی يعقوب تعقيبوني ته دوام ورکړ . د جنرال فرامرز خان تر قوماندې لاندې يې يو لوی لښکر وگماره چي يعقوب د سيستان او چخانسور په دښتو کي تعقيب کړي، يعقوب له ډېرو ځغاستو او ستونځو گاللو وروسته هرات ته د رسېدلو موقع وموندله او هغه يې محاصره کړ . ده پر کلا باندي يوه ناکام يرغل ورووړ چي بير ته تر سختو مرگ ژوبلو وروسته پر شا کړل سو، دی له خپلي سوبې نا اميده سو او آخرنی هڅو يې د ښار او کلا څښتن کړ . ده چي وليده چي اوس نو د خبرو اترو له پاره په يوه ښه دريځ کي دی او ښه عکس العمل به ووينې د پلار نه يې د بخښې غوښتنه وکړه، زلمي ايوب خان يې پر خپل ځای کښېناوه او خپله د گلونو له گېډيو سره د کابل پر لوري وخوځېد، شېرعليخان هم په ښکاره يعقوب وباخښه او له لږ ترده پس يې اجازه ورکړه چي هرات ته ستون سي او خپله دنده پر مخ بوزي، کله چي يعقوب په کابل کي و زلمي ايوب خپلي ورسپارل سوي دندې په ښه ورتيا پر مخ وړلې همدا راز په فارغه وخت کي له کرنيل مهري خان نه په پوځي زده کړه لگيا و، کرنيل مهري خان يو روسی و چي اسلام ته اوښتی و او وروسته بيا د جاسوسي په تور له هيواده وشړل سو . شهزاده په دې زلميتوب کي معلومېدی چي په پوځي پوهه کي ښه پرمختگ کوي چي دا ورتيا يې وروسته پر ښه وخت په کار ورغله .

يعقوب د دې له پاره چي خپل دريځ غښتلی کړي پلار ته يې وړانديز وکړ چي د فراه ولايت يې هم په واک کي ورکړل سي . د دې هيئت مشري د ايوب پر غاړه وه کابل ته په رسېدو سره ايوب په ښه پلرنی مينه ومنل سو، خو وړانديز يې ونه منل سو ځکه امير نه غوښتل چي پخواني ياغي زوی يې لا غښتلی سي، دا د کابل ښار او خپل پلار ته د ايوب وروستني ورتک و .

د ۱۸۷۳ ع کال د نومبر پر ۲۲ مه امير شېرعليخان په رسمي ډول ۱۱ کلن هلک عبدالله جان د خپل ځای ناستي او وارث په توگه اعلان کړ . يعقوب د پلار د پرېکړې په وړاندې سخت احتجاج وکړ . امير دی د خوندیتوب په ژمنه کابل ته وغوښت کابل ته د رسېدو سره سم په ناڅاپي توگه ونيول سو او په زندان کي واچول سو . د امير دا ناڅاپي گام د خلکو د هري کړی لخوا سخت وغندل سو او په هندوستان کي بر تانوي نائب الحکومه لارډ نايتبروک يو ډېر بې پروا ليک ورته راولېږی چي بالآخره يې د هند او افغانستان پر ښو اړيکو سيوري وغوړاوه . امير دا کار د سوی ژمني ماتونه وگڼل او دا کار يې د افغانستان په کورنيو چارو کي لاسوهنه وبلل، له يعقوب خان نه تر خان خلاصوني وروسته امير شېرعليخان خپل پام ايوب ته واړاوه چي اوس نو په حقيقت کي د هرات واکمن و .

شاغاسي شېردل خان او ميراخورخان په بېړه هرات ته ولېږل سول چي د شهزاده له دماغه ټول د نيوني او ويري شکونه لکه د ده د مشر ورور سره چي سوي وه ليري کړي . پلاوی لا هرات ته نه و رسېدلی چي ايوب پر خپلو لارو چارو غور پيل کړ، ده د پلاوي مشر شېردل خان ونيوی چي په دې توگه يې د پلار په وړاندې د خپل بغاوت دريځ غښتلی کړ، امير شېرعليخان بېړنی گام اوچت کړ او سپه سالار حسين علي خان او سردار محمد عمر خان يې د دې ياغي شهزاده د نيولو له پاره ولېږل . ياغي ايوب چي لا يې پوره هوډ نه و کړی له هراته د شاهي ځواکونو د مقابلې په موخه چي له کابله را روان و راووتی . دا چي هڅه يې ناکامه سوه نو يې پرېکړه وکړه چي افغانستان پرېږدي او په مشهد کي پناه واخلي . ايران فراره شهزاده ته په ورين تندي هر کلی ووايه او ده ته يې د ۱۴۰۰۰ قيرانو بسوونکي مياشتنانه معاش وټاکه، دومره زيات مقدار پيسې به نو غالباً د انگلستانه راتلې . د سياسي او شاهي حيثيت لرلو له امله د ايوب ژوند په پردي هيواد کي هوسا و، ايوب په ايران کي څلورنيم کاله پاته سو تر څو د ۱۸۷۹ ع په فروري کي يعقوب تخت د ځان کړ، ايوب له هيواده څخه د لير يوالي سره سره په افغان چارو کي ژوره علاقه ښووله ځکه دی پوهېدی چي راتلونکی يې ورسره تړلی دی . په مشهد کي د څلور کالو او څلور مياشتيني استوگني پر مهال ده د ټولو هغو خلکو زړه وگاټه چي ورسره په تماس کي کېده به، ده

خپل زيات وخت په سياسي بحث، مردانه لوبو، آس سپرلۍ، په ښکار او د نړيوالو چارو په مطالعه تېراوه، دوه واره يې هوډ وکړ چې تهران ته ولاړ سي او د ناصرالدين قاجار سره خپله وويني خو د خپل پلرني هيواد ناوړه حالاتو به يې مخه ونيول . په عين حال کي په افغانستان کي د پام وړ پيښي رامنځته کېدې او د برتانيې سره د امير شېرعلي خان اړيکي چې د يري شې وې په بېړه مخ پر خرابېدو سوې .

## د افغان - انګليس دوهمه جګړه

**لاملونه**

په دې جګړه کي د انګرېزانو د ماتي زيات لاملونه وو شېرعليخان د برتانيانو څخه زياتي ګيلي لرلې، د کورنۍ جګړې پر مهال يې کومک ته رانه غلل، بلکه د ده پر ځای يې د سيالانو سره مرسته وکړه . د دې شکاياتو سره بيا هم کله چې د ۱۸۶۸ په منۍ کي امير پر تخت کښېنستې د پر وس يې وکړ چې د خپل د پر نژدې ګاونډې هيواد برتانوي هند سره د نږدې او دوستانه اړيکو د ټينګښت له پاره خپلي ټينګه هيله څرګنده کړې وه، لارډلارنس د امير د خلاندي سوبې له امله د مبارکۍ د وړاندي کولو په لړ کي ده ته د متقابلو سو هيلو څرګندونه وکړه . په يوليک کي چې د ۱۸۶۸ع د اکتوبر پر ۲ مه ليکل سوی و امير ته يې ليکلي وه :

"ما ستا ليک چې کابل ته د خپل خوندي راستنېدني او د پاچهي بيرته تر لاسه کوني په اړه دې پکښې خبر کړی وم تر لاسه کړ، زه تاسو جلالتمآب ته ستاسو د سوبې له امله چې يوازې ستاسو د زړورتوب، وړتيا او ثابت قدمۍ په مټ شونې سوې مبارکي وايم . زه باور لرم چې تاسو به د هغه چا سره چې ستاسو په وړاندې جنګېدلي پوست چلند وکړئ په تېره بيا په داسې حال کي چې څرګند يږي دوی د وخت د پيښو او مهالني وضعيت له امله مجبور سوي وه .
البته چې دوی د راتلونکي له پاره خپله وفاداري باوري کړي . په دې هکله د زړه سوي او پېرزويني په سوولو به تاسو جلالتمآب د خپل واک پر سيمه د غښتلي واکمنۍ کولو جوګه سئ . يو شی چې تل ما څوروي هغه ستاسو د پلار امير دوست محمد خان د کورنۍ د ړي وړي کېدنه ده چې پر سيالو ډلو سره وېشلي سوي او کورنۍ جګړه يې رامنځته کړې او له دې امله د ډيرو زړه ورو مشرانو ژوند ضايع سوی او په ټوليزه توګه افغانستان کمواکه سوی دی . زه باور لرم چې تاسو جلالتمآب به د ستر وار زښتونو پېرزوينو وړاندي ليدل سوي او سنجول سوي چلند څخه په ګټه اخيستنه د دې جوګه سي چې خپل هيواد ته سوله او نېکمرغه راستنه کړئ . زه چمتو يم چې نه يوازې د دوستي او سو اړيکو هغه مزې چې د برتانيې د حکومت په استازيتوب زما او امير دوست محمد خان تر منځ ټينګې سوي وې لا هم ټينګې کړم، بلکي غواړم څومره چې شونې وي دا مزې لا ټينګې کړم " .

په دې وخت کي د ځينو انګليسي سياستوالو له نظره د افغانستان سره د برتانوي هند د پولو په اوږدو کي وضعيت د اطمينان وړ نه و چې په هند او انګلستان کي د برتانوي مقاماتو د خواښيني لامل ګرځېدلی و .

د هند د دفاع د څرنګوالي په اړه وخت ناوخته د اند (؟) بېلابېل مکتبونه رامنځته سول له دوی نه يو هم د (پرشاتګ) مکتب يا (Backward School) په نامه ياد يدی چې د اباسين کرښې (Line of Indus) منسوخېدنه يې غوښته .

لارنس د دې له پاره چې د برتانيې په وړاندي د هندي پاڅون اند ښمنوونکو شېبو پر مهال د افغانانو زړه وګټي، نو يې د افغانستان څخه د پولي په آخوا ټولو سيمو د بيرته ستنونو د خبري ملاتړ وکړ . د ځينو نورو برتانوي سياستوالو لخوا هم چې د يادوني وړ يې جيمزاوترام دی، د دې خبري ملاتړ وسو . نوموړي د هند د ساتني پر موضوع باندي په يوه اوږده ياداښت کي ليکلي چې د هندي امپراتورۍ طبيعي او نه لاندي کېدونکې پوله همدا آباسين دی .

د دې نظريې مخالف مکتب يې د وړاندي تګ مکتب (Forward School) باله چې دوی د بشپړي قبايلي سيمي لاندي کونه او د يوه عملي سرحد ټاکنه غوښته چې د افغان بريد پولي حيثيت به ولري . سرمورټيمر ډيورنډ چې د دې تګلاري لوی ملاتړی و د ټول قبايلي کمربند چاپېر يې د اور ګادي د پټلۍ د غزوني او په يو دوستانه فضا کي يې له افغانستانه سره د ښې نښلوني وړاندي کړي وخو د څرګندو محلو او لاسوهني مخه يې ونيول سي .

د وړاندي تګلاره (Forward policy) په خپله پراخه مانا پر افغان چارو برلاسي غوښته او موخه يې دا وه چې د برتانوي واک اغېز دې د آمو تر څنډو ورسي . دې نظريې د دې خبري

پاتې په (۸۱) مخ کي

د عبدالولي شجاعت ژباړه

# سياست د اسلام له نظره



د سياست کلمه د اسلامي دائره المعارف له مخې د (ساس) د کلمې مصدر دی، چې د ټولنې د افرادو او اعمالو د بهتر کېدو او ښه والي په مقصد مسئولين د الهي قوانينو له مخې امر او نهي پر ځای چې اصولاً د حضراتو پيغمبرانو (ع) د عمدو صفاتو څخه شمېرل کيږي .

د دولتونو مشران او عالمان چې قاضيان او مجتهدين هم پکښې شامل دي د نبوت د خلافت د موجوديت له رويه د بشري جوامعو د مادي او معنوي خير او مصالحو له پاره د همدې دندي د اجراء وجيبه پر غاړه لري .

د سياست کلمه لکه د (پوليتيکس) کلمه چې د اروپا په اصطلاح پر ښار د حکومت کولو په معنی راغلې ده، محدوده نه ده او پخپله د کلمې په ذات کې لويه او جهانشموله معنی پرته ده. د سياست کلمه د (سوس) څخه راغلې ده چې معنی يې د (اصلاح کول او ښايسته کول) دي، په دې توگه سياست د خلکو او حکومتونو يا اسلامي ټولنې د حال د اصلاح کېدو او ښکلې کېدو او د نظر او عمل ځرگندوی دي .

سياستمدار هغه چاته ويل کيږي چې سياست کوي، سياست په پراخه معنا سره د خلکو د احوال، اقتصاد، اجتماعي علمي اصلاح او د هيواد د کارو تنظيم او اداره او په هغو پوري اړوند د داخلي او خارجي امورو مراقبت، د فساد او ظلم مخنيوی او په ټولو ساحاتو کې د عدالت پر ځای کولو معنی ورکوي .

**په اسلام کې د سياست خاصيت**

په اسلامي حقوقي نظام کې سياست بايد د استبداد، نفس پرستی، درواغ، مکر، خطاايستل، ظلم او فساد څخه بشپړ پاک وي .

سياسي نظريات او مربوطه عمليات يې اصولاً د اسلام پر اساساتو بنا او د قرآن عظيم الشان او سنت نبوي د هداياتو او ارشاداتو له مخې عيار سي او په همدې حدودو کې سياست د هغې پوهي نوم دی چې د خلکو تر منځ وروروليمينه او يووالی پيدا کوي او په ټولو مسايلو کې اصلاح او ښکلا راولي .

د سياست تعريف :

حضرت امام غزالي په خپل مشهور تأليف احياء العلوم کې د سياست د پېژندني په باره کې وايي چې د خدای ﷻ د مخلوق اصلاح او هغې لارې ته د هغو لارښوونه چې د دنيا او آخرت (عذاب او نامطلوبيت) د خلاصون يوازينۍ ذريعه ده سياست ويل کيږي .

دی وايي چې هغه تدبير دی چې د ژوندانه د وسايلو او د هغو په چاپېر د افرادو او ټولنې تر منځ د محبت يووالي او يو د بل سره د تعاون او مرستې د پيدا کېدو سبب گرځي .

ابن خلدون د سياست د پېژندنې په باره کې وايي سياست او حکومت د انسانانو د ساتنې او د هغوی د گټې د کفالت او ضمانت نوم دی او دا ډول سياست د مځکې پر مخ باندې د هغه پر بنده گانو د خدای ﷻ نيابت دی، چې پر انسان د هغه احکام اجراء سي .

حضرت مولانا گوهر الرحمن د اسلامي سياست مؤلف په خپل کتاب کې پر حضرت ابوالوفا ابن بغدادی حواله ورکوي چې د سياست د تعريف په باره کې وايي :

سياست د هغه تدبير نوم دی چې د هغه په واسطه خلک يو د بل سره د اصلاح او مصلحت په لور نژدې کوي، فساد او خرابي له منځه باسي .

حضرت شاه ولي الله دهلوي د سياست په باره کې وايي چې : (سياست د حکمت نوم دی او د هغو تدبيرو

څخه بحث کوي چې د هغو په واسطه د خلکو تر منځ د روابطو ساتنه کیږي).

اسلامي حقوقدانانو او فقهیانو د سیاست دا ډول پېژندنه کړې ده، د اصلاحي تدبیرونو او د حکومتونو او نسق پر مخ وړلو ته سیاست وايي.

سیاست یو فن او حکمت دی چې د حکومت ریاست، نظم، ترتیب او بایستوالي یې موضوع او مهمه وظیفه تشکیلوي.

د سیاست غرض

د ټولني او افرادو او د اسلامي سیمو د ګردو مصالحو ساتنه او د خلکو په منځ کې د ګټورو اړیکو پیدا کېده اسلامي قوانینو، قواعدو او اخلاقو حاکمیت تطبیق او تعمیم او د جهاد له پاره آماده ګي د سیاست غرض او هدف جوړوي. په دې اساس سیاست د اصلاح کولو او بایسته کولو په معنی هغه دنده ده چې د اسلامي نوي ټولني د مصالحو او د خلکو په منځ کې د ښو او ګټورو اړیکو د پیدا کېدو او په بین المللي او نورو د ژوند، عقیدې، حیثیت، مال او ګټو ساتنه کوي او ټولنه د تشتت او پراګند ګي څخه محفوظ او خوندي ساتي.

اسلام هغه سیاست چې پر ظلم، استبداد او بې عدالتي بنا وي بشپړ حرام بولي او محض د قانون حاکمیت غواړي. د اسلامي حقوقي لوی نظام له مخي عادل سیاست کول نه یوازې د دولت وظیفه ده بلکې ټول مسلمانان مکلفیت لري چې د هغه سیاست چې پر عدل بنا او د اسلامي قوانینو پر اساس منځته راغلی وي تائید وکړي او د هغه د بری او تحقق په خاطر خپل ځان ونه سپموي.

د سیاست ډولونه

سیاست د خپلو محتویاتو له نظره پر دوو لویو برخو وېشل کیږي:

(۱) افصله (موقتي سیاست)

(۲) اصولي سیاست (دایمي سیاست)

(۱) افصله سیاست عموماً د ملتو او هیوادو د اجتماعي، اقتصادي، علمي او نظامي او ځینو نورو تحولاتو سره بدلون او تغیر مومي، کله د هیوادو سیاسي هویت، سیاسي سرحدونه، سیاسي قراردادونه، سیاسي اتحادیې، دولتي او غیر دولتي مهمي قواوي لکه شورا، قضائیه او اجرائیه، د حزبو تشکیل او له منځه تلل، فشار اچونکي ټولني، سوله او جنګ، بری او ماته او نور ټول هغه موقتي فعالیتونه دي چې د سیاست سره اړیکي پیدا کوي، همداسي د انتخاباتو طرز، د حکومتونو او دولتونو د مشرانو او مأمورینو عدم لیاقت او زوال یې په موقتي سیاسي فعالیتونو کې شمېرل کیږي.

حزبونه د ځینو ملحوظاتو له اثره پیدا کیږي او له منځه ځي یا تغیر کوي. د هیواد په سیاسي سرحداتو او هویت کې تغیرات پیښیږي، سیاسي قراردادونه، نړیوال میثاقونه او معاهدات د زمان د یوې دورې له پاره معتبر وي. د شرایطو د اوضاع او اموالو د تغیراتو سره د تغیر امکانات پیدا کوي یا دا چې بې اثره کیږي یا د قراردادو یا میثاقو موضوعات اصولاً موقتي وي. د زمان او مکان د تغیراتو د ژوند او اخلاقو او روحیاتو د بدلون، د اقتصادي پیداوارو که مصنوعي وي یا طبیعي د عرضې د پر بشت یا لږ والي بالکل له منځه وتل پر افصله سیاست اثر اچوي. اصولاً ټول سیاسي موقتي فعالیتونه د اسلام د لویو اصولو د ارزښتونو او اسلامي روحیې څخه نشأت کوي د هغوی متناقض نه بلکې موئید هم وي.

د اسلامي حقوق هغو ته د اهمیت په نظر ګوري او د اسلامي شورا د فیصلو پر اساس یې اجراآت لازم او ګټور ګڼي او قرآن عظیم الشان د شورا په مبارکه سوره کې په څر ګند ډول داسي ذکر سوي دي چې: (وامرهم شوری بینهم) یعنې د مسلمانانو امور پخپله د دوی په منځ کې د شورا له مخي اجراء کیږي.

(۲) اصولي یا دایمي سیاست

د اسلام اصولي سیاست د هغه ډول سیاست څخه عبارت دی چې د بشر د وجود او ژوند سره په لایتغیر صورت ملګري، مرستیال او لارښود وي، اسلام په دې مورد کې قوانین لري چې دا قوانین زمان او مکان یا نورو حوادثو یا احوالاتو کې تغیر او تبدیل نه مومي لکه د ټولني په فردي، اجتماعي او اقتصادي امورو کې د اسلامي اوصولو حاکمیت، عدل، علم، اسلامي اخلاق، شورا د بشر حقوق، مادي او معنوي قوت، د جهل کفر او شرک پر ضد مبارزه او جهاد د مځکي پر مخ بر او بحر او ماحول کې چې هوا هم پکښي داخله ده د فساد مخنیوی او اصلاح ده.

د اسلامي سیاست له رویه د خلکو د احتجاج حق

د حکومت، دولت، مشر یا ادارو او مؤسساتو پر ضد د احتجاج حق منل سوی امر دی او دا حق د اسلامي ملت و ټولو افرادو او ټولنو ته ور کول سوی دی چې که فرد یا افراد یا یوه ټولنه وګوري چې دولت، حکومت، مشر یا آمیران او مأمورین د اسلام د اساساتو او قوانینو څخه چې ټول یې په اجراء مکلف دي حق او عدالت تر پښو لاندي کوي د

اسلامي ملت او امت او ټولنو ته فردي يا په ټوليزه توګه سره حق سته چې احتجاج او مظاهره وکړي او حالت د مثبت او مترقي لور ته سوق کړي څو کاروانه بېرته د اسلام د حقوقو او عدالت پر اساساتو برابر سي .

د اسلام په سياسي نظام کي د بيان او نظر آزادي :

د اسلام په سياسي نظام کي د فرد يا افرادو، ټولنو او احزابو د بيان او نظر آزادي تر هغه ځايه چې د اسلامي قوانينو او روحيې سره متناقض نه وي تضمين سوي دي چې انسانان د اسلامي ټولني يا د بشر د مادي او معنوي يا د خپلو حقوقو لاسته راوستلو له پاره د عدالت، تقوى، فضيلت په رڼا کي په آزاد ډول خپل بيان او نظر څرګند کړي .

حضرت امام اعظم رح پر هغه پېښه باندي استناد کوي چي حضرت علي رض د خپل خلافت په دوره کي هغه پنځه تنه آزاد کړل چي په کوفه کي و ده ته د سپکاوي کولو او يو يې د خليفه رض د وژلو د تصميم نيولو له بابته ګرفتاره سوي و .

د اسلام په سياسي نظام کي د ټولنو، احزابو، اتحاديو او علمي او فني موسساتو د تأسيسولو د آزادۍ حق :

د اسلام مقدس دين په دې برخه کي ټولنو، احزابو او اتحاديو د تأسيس د آزادۍ تضمين کوي چي د تقوى، عدالت، فضيلت او مساوات غوښتنو په رڼا کي د بشر د مادي او معنوي ژوند د لا ښه والي په مقصد منځته راځي او حکم دی چي په ښو او نيکو شيانو سره ټول سئ نه پر بدو شيانو .

د حضرت ابن القضاعي رح په تأليف ترک الاطناب چي د حديثو يوه مجموعه ده، داسي راغلي دي :

حضرت رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي چي (يو ځايوالی رحمت او بېلوالی عذاب او بل دا چي د خدای ج لاس پر جماعت پروت دی) .

يعني په اتحاد او يووالي کي تل الهي فيض او برکت پروت وي، او هم د ټولني د زرغونتيا، سمسورتيا او رغوني کاروان د خپل وروستي سرمنزل او هدف ته په ډېر ښه شان ځان رسوي .



## د ميوند فاتح . . .

له ملاتړه هم دريغ نه کاوه چي افغانستان دي په بشپړ ډول د برتانوي هندي امپراتورۍ له لوري لاندي او جذب کړل سوه .

د لارنس پاليسي داوه چي قبايل دي خپلواک پرېښودل سي او هڅه دي وسي څو له هري لاري چي وي د دوی باور او نېکبيني تر لاسه سي . د افغانستان سره د اړيکو اړوند د ده نظر داو :

"د رښتيني واکمن سره يې دوستي او په کورنيو چارو کي يې له لاسوهني نه کلکه ډډه" د نه لاسوهني سنجيده پاليسي چي "استادانه لټي" يې بلله. د هند د نائب الحکومه په توګه د لارډ لايټون Lord Lytton تر راتګه ښه وچلېده .

سر هينري رالنسن چي د رياستي جرګې غړی و، د ۱۸۶۸ ع په جولای کي يې يوه مشهوره بيانيه ورکړه چي په هغه کي يې د يوې لانوري د وړاندي تګلاري Forward policy خبره کړې .

البته چي دا نظريه د وروستنيو پرمختګونو په پرتله لا هم منځلاري او نرمه وه. ده د دې خبري ښانويل چي کوټه دي داسي سي چي د بولان پاس اداره کوي لاندي کړل سي، د افغانستان د امير سره دي اړيکي ټينګي سي، په کابل کي دي برتانوي سفارت پرانستل سي او د افغانستان امير ته دي کلنۍ بسپنه ورکړه سي .

لارډ لارنس د دې خبري ټينګ مخالف و چي په هند کي يې د تر ټولو ور سلاکارانو لخوا ملاتړ کېده. لارنس بشپړ باور درلود چي په افغان چارو کي لاسوهنه به يو لوی مشکل رامنځته کړي او ده نه غوښتل چي د روسيې په وړاندي که رښتيا يې پر هند بريد په زړه کي وي ستونزي را ربړونه کم کړي . دی په دې اند و چي پر افغانستان لومړي بريد کوونکي ته به د دښمن په ستر ګه وکتل سي او دوهم به د دوست او ژغورونکي په توګه ومنل سي . د ده تګلاره په لږو بدلونونو سره د ده د ځای ناستو لارډ مايو او لارډ نارت بروک لخوا هم تعقيب کړه سوه .

ټولي هغه بدمرغي چي لارډ لارنس به يې هر کله يادونه کول هغه وخت رښتيا سوې چي د دولت وزير لارډ سالسبري او د هند نائب الحکومه لارډ لايټن خپلي تګلاري ته بدلون ورکړ او د هند د پولو په را وړاندي کولو او په افغان چارو کي په لاسوهنه پېلولو يې تجاوزي تګلاره غوره کړ .

نور بيا . . .

که په ميوند کي شهيد نه سوې
خدايږو لاليه بې ننګی ته دي ساتينه
پېغله ملالۍ

ميراجان همکار

# د شوراگانو، سياسي گوندونو او تنظيمونو تاريخي پس منظر او پرتله

جرگه او مرکه د بشر په لومړني هجره (کورنۍ) کې زېږېدلې، د کلي په سطحه يې امتداد موندلی، ښارونو ته غځول سوې او گام پر گام يې بين المللي بڼه غوره کړې ده. دغه پروسه يو تاريخي عيني او د ټولنيز ژوند د انتظام، بقا، دوام او پرمختگ موثره وسيله ده. په نننۍ نړۍ کې شوراگانې دولتونه ټاکي او له پښويې غورځوي. ځکه انتخابي شورا او جرگه د خلکو د واقعي ارادې ممثل او د ټولني څخه پورته سوی قوي او ځواکمن قوت دی.

د شوراگانو په تاريخ کې لرغوني يونان ډېر قدامت لرونکی هيواد دی چې د دولت په امورو کې د خلکو ونډه او اشتراک د همدغو شوراگانو له لارې تامينېدل او دا د دموکراسۍ او مدني ټولني ډېرې لرغوني بېلگې دي. د تاريخ په اوږدو کې حاکمي هيئت کوښښ کړی دی چې د خپل مشروعيت او بقا له پاره شورا او جرگې وکاروي چې دغې مسئلې د شوراگانو مقام او حيثيت ته تاوان او زيان رسولی دی. خو هغه مستقلې او د دولتونو د نفوذ نه آزادې ټولني او جرگې واقعاً د خلکو د واقعي ارادې نماينده گي کړې او د هغوی د هيلو او اميدونو د محراق په حيث پاته سوې دي. زموږ په هيواد افغانستان کې د جرگو، مرکو او شوراگانو تاريخ ډېر اوږد او ځلاند دی. افغانان په خپل پنځه زره کلن تاريخ کې د جرگو او مرکو مرکز پاته سوی، د کورنۍ شخړې څخه بيا تر ملي او بين المللي لوړو سطحو پورې په زرهاوو مسئلې او مشکلات يې له همدغو شوراگانو له طريقه حل کړي دي.

افغان ولس د ژوندانه په مختلفو مراحلو کې د ډېرو سختيو سره مخ سوی خو د حل يوازينۍ موثره لاره همدغه جرگې، مرکې او شوراگانې وې او دي. د لوی احمدشاه بابا درنه لويه جرگه، د ميرويس نيکه تاريخي شورا چې د هيواد خپلواکي، ملي حاکميت، د خاوري بشپړتيا او ملي وحدت تاريخي سندونه يې همېشني کړه. دغه جرگې او مرکې د افغانانو تاج گڼل کيږي. د پورتنۍ تاريخي کتنې پر بنياد دا حقيقت ځرگنديږي چې شورا او مشورې د بشر د ژوند د پيله سره جوخت تشکيل موندلی او د بني آدم د اولاد د حيات د تکامل او پرمختگ څنگ په څنگ د رشد او انکشاف پړاوونه يې وهلي تر څو اوسنۍ زمانې ته يې خان رارسولی دی.

مگر که څه هم حزبونو او تنظيمونو خپل الهام د همدغو مدني ټولنو، جرگو او مرکو څخه اخيستی خو د اهدافو، کړنلارو او عمل له مخې کاملاً سره توپير لري. همدارنگه د احزابو او جماعتونو ډلو او سازمانونو سوابق او تاريخ په منظم ډول د اتلسمې او نولسمې عيسوي پېړيو څخه تر او لگوي چې په شلمه پېړۍ کې د رشد او انکشاف مراحلو ته رسېدلي دي. د تاريخ او ټولنپېژندني (سوسيولوژي) علومو پر اساس د شوراگانو او سياسي حزبونو ماهيت، اهداف او ځرنگوالي په لاندې ډول مشخص کېدای سي:

الف - شورا يا جرگه:

شورا یا جرګه د بشر د ژوندانه د عیني ضرورتونو پر اساس د خلکو تر منځ نطفې وهلي، زېږېدلي، لوی سوي او د کمال درجې ته رسېدلي، نو ځکه وګړني خصوصیات لري او د خلکو کلکه پلوي ورسره ده. د شوراګانو موخه او مقصد د هغو مسایلو او مشکلاتو حل دی کوم چي یې ټولنه غواړي. په حقیقت کي د شورا اهداف عمومي دي او د کوم خاص ایدیالوژۍ پیروي نه کوي، بلکي د یو هیواد په سطحه ملي ایدیالوژۍ درلودلای سي. لکه څنګه چي په شوراګانو کي لوی هدف په مسایلو کي د خلکو اشتراک او برخه اخیستنه ده. بناً شورا د دموکراسي او ولسواکۍ مظهر او بهترینه وسیله ده. بله مشخصه دا ده چي شوراګاني د خپلي فیصلې د تطبیق له پاره کوم اجرائیوي قوه نه لري خود جرګو او شوراګانو د معقولي فیصلې او ښه سوابقو له امله د خلکو معنوي اعتماد او باور ورسره دی چي د شوراګانو فیصلې تطبیقي پړاو ته رسوي او د عمل جامه وراغوندي.

شورا په ټولنه کي د مشکلاتو د حل د یوې موثري وسیلې په حیث پېژندل سوې او د تاریخي روایاتو او واقعیتونو پر بنا د خلکو د دود او دستور مهم جز ګڼل کیږي. د دقت او توجه وړ ده چي په یوه مذهبي ټولنه کي په شورا کي د دیني علماوو او روحانیونو رول او نقش خاص ځای او مقام لري. پاته دي نه وي چي د هغو شوراګانو او جرګو د فیصلو د تطبیق کوم چي د دولتونو په سطحه مطرح کیږي او مقررات یا قوانین تصویبوي او یا هم حکومتونه ټاکي د همدغو حکومتونو څخه سرچینه اخلي او حکومتونو ته د تطبیق او تعمیل وسایل او افزار برابروي.

ب - ګوندونه (حزبونه)، تنظیمونه:

ګوندونه (حزبونه) او تنظیمونه سیاسي، ایدیولوژیک او مذهبي کرکترونه درلودلای سي، که څه هم په شعارونو او کړنلارو کي د خلکو او ملت د سوکالي، عدالت او انصاف، خدمت او ورورولي خبري کوي خو په واقعیت کي عملاً اکثراً د یو شخص یا ګروپ افرادو د نظریاتو او افکارو د تطبیق او تعمیل وسایل ګرځي او د معینو او مشخصو کسانو او ډلو ټپلو د منافعو ساتنه او تامین غواړي، چي مثالونه یې په ټوله نړۍ کي موجود دي، لکه په ایتالیا کي د موسولیني حزب، هتلري نازیزم، مارکسیست، لیننیستي ګوندونه او زموږ په هیواد کي ځیني پېژندل سوي ګوندونه او تنظیمونه چي هر یو د افغانستان په معاصر تاریخ کي د خپلو کړنو خاص ریکارډونه لري.

د یادوني وړ ده چي په دموکراتیکو او پرمختللو هیوادونو کي چي سیاسي ګوندونه د معین رشد او تکامل سطحې ته رسېدلي، د حزبونو په ذکر سوو کرکترونو باندي تغیرات راغلي، ملي او مدني خصوصیت یې خپل کړی او په سوله آمیزه مبارزه باندي د حکومت انتقال د یو ګوند نه بل ګوند ته صورت نیسي. خو په وروسته پاته هیوادونو کي دا لا یو لوی واټن دی. په وروسته پاته هیوادونو کي چي دریمه نړۍ هم ورته ویل کیږي، حزبونه او تنظیمونه خاص سیاسي یا مذهبي او عقیدتي مقصدونه لري. سره له دې چي د خیر او فلاح او د سوله آمیزي مبارزې ږغ پورته کوي او په خپلو تګلارو کي دغه طرز العمل ټاکي مګر د تاریخ په شهادت اکثراً په مطلق دیکتاتوري اوښتي، خپل ملت لا څه چي آن نړۍ یې د لویو مصیبتونو سره مخامخ کړې ده. لکه څنګه چي دغو ګوندونو او تنظیمونو په محصور او محدود ډول د ځینو اشخاصو یا ډلو ټپلو د تیوري، اند ښنې او نظریاتو د تطبیق وسایل دي، تر دې حده چي هر یو حزب یا تنظیم د همهغه شخص په نامه یادیږي، لکه د هتلر نازي ګوند، د لینن (مارکسیست، لیننست) ګوند، په افغانستان کي مختلف ګوندونه او تنظیمونه چي د خپلو رهبرانو په نامه یادیږي.

داسي حزبونه او تنظیمونه وګړني بنیاد نه لري او اکثراً په چل ول او د برچې په زور خپل ځانونه پر خلکو تپي. کله چي د دې ډول سازمانونو رهبران له منځه ولاړ سي او یا یې سرچینه وچه سي ورځ په ورځ ضعیفه کیږي او له منځه ځي. بله خبره چي د ډېري توجه او اهمیت وړ ده هغه دا ده چي په تأسف سره باید وویل سي چي په وروسته پاته هیوادونو کي لکه څنګه چي د تجارتي اموالو او امتعو د عرضې او خرڅلاو بازار ګرځېدلی په سیاست کي هم ډېر حزبونه او تنظیمونه د خپلو ګټو سره سم خپل سیاسي بازار پرانیستي او سیاسي پانګي اچوني تر سره کوي. ځکه چي په دې هیوادونو کي د اقتصادي او اجتماعي ناخوالو او وروسته والي له سببه دوی په آساني سره کولای سي چي خپل سیاسي او مذهبي اهداف تر لاسه کړي. نو په پټه او ښکاره خپل نماینده ګان لټوي او د مختلفو ذرایعو په وسیله ځان مقصد ته رسوي. په دې معامله کي ځینو خلکو د ناپوهي او منفي احساساتو پر بنیاد پر ته د هیوادني منافعو او ارزښتونو او ملي مصالحو د په پام کي نیولو سره خپل سیاسي کار و بار جوړوي او د خپلو نفسي او شخصي ګټو له پاره ملت ته لوی

پاته په (۸۷) مخ کي

# غوره اخلاق

ورمه همت اسحاقي

د اسلام د دین بشپړ صفت په یوه توري کي بیان سوی دی چي "غوره اخلاق اختیار کړئ" او د غوره اخلاقو صفت یې بیا په دې ډول بیان کړی دی چي : "یو څوک چي ستا سره ښه نه کوي د هغه سره ښه وکه او که کوم څوک پر تا باندي ظلم کوي د هغه تر ګناه ور تېر سه" .

تر ټولو بده خبره د انسان بد اخلاقه کېدل دي . هر کله په هر ځای کي د خلکو سره ښه رویه تر ټولو لویه نېکي ده او په ټولو ښو عملونو او ښو خویونو کي تر ټولو غوره ښه اخلاق دي . یو پرهېزګاره سړی چي ټوله ورځ عبادت کوي، هر وخت خدای یادوي خو د خدای ﷻ مخلوق د هغه څخه خوابدی وي او پر ښانه وي نو د هغه له پاره هيڅ ثواب نسته . یو انسان و بل انسان ته پر مال، ښایست او یا کمال او داسي نورو باندي لویي یا فخر نه سي کولای. د فخر خبره یوازي او یوازي د انسان په غوره اخلاقو پوري تړلې ده .

بد اخلاقي نیکي له منځه وړي. اخلاق پوهان وایي : خدای ﷻ انسان تر ټولو مخلوقاتو ښه او ښایسته پیدا کړی دی نو انسان ته لازمه ده چي خپل اخلاق هم ښایسته کړي . یو انسان یوازي په غوره اخلاقو د غوره کسانو درجه حاصلولای سي، بداخلاقي یوه داسي ګناه ده چي هیڅوک یې تر مرتکب کېدو وروسته نه ور تېرېږي . خلک له یوه داسي سړي سره ناسته ولاړه خوښوي چي هغه غوره اخلاق ولري که څه هم هغه بد عمله او بد کاره وي . خو د هغه بزرګ څخه لیري ګرځي چي بداخلاقه وي .

غوره اخلاق یو داسي صفت دی چي د علم، عمل او عبادت باوجود د انسان په وجود کي د هر ډول کموالي پوراینه کوي . په نړۍ کي چي چاته لوړه مرتبه په برخه سوې ده همدا غوره اخلاق یې لامل بللای سو .

غوره او بد اخلاق :

د غوره اخلاقو صفت دا دی چي انسان و نورو ته د تکلیف ور کولو څخه ځان وژغوري. د اړو کسانو سره ښه چلند وکړي او د ښه او غوره اخلاقو له کبله ټوله په درنښت ور ته وګوري .

د غوره اخلاقو ځښتن په مفلسي او مالداري دواړو حالتونو کي د خدای ﷻ د مخلوق د خوښۍ هڅه کوي. په سختۍ کي صابر او د بدۍ په بدل کي انتقام نه اخلي . همدا ډول په نفس، روح او باطن کي چي اعتدال وي و دې ته اخلاقي ښایست ویل کېږي یا په نفس کي اعتدال په داسي اندازه سره ټینګ سوی وي چي بېله اختیاره انسان ښه اخلاق ولري .

د کلک عزم کول په دې سبب ضروري دي که چیري یو سړی بې ضرورته د ېر مال خرڅ کړي نو دا کار غوره اخلاق نه بلل کېږي، د کلک عزم لرلو مقصد دادی چي د ده په طبیعت کي د غوره اخلاقو استعداد پیدا سي. که څوک تر ډېر چرت او فکر کولو وروسته په ډېره سختي سره مال خرڅ کړي نو دا هم غوره اخلاق نه بلل کېږي .

و څلورو شیانو ته باید چي پام وکړو :

١ . ښه یا بد فعل : ډېر خلک طبعاً بخیل وي خو چي وس یې ور سیري د نامه له پاره پیسې خرڅوي نو د هغه دا فعل په سخاوت کي نه شمېرل کېږي او نه هم غوره اخلاق ور ته ویلای سو .

۲ . د ښو یا بدو افعالو نیکي : فقط نیکي په یو چا کې وي دا هم د غوره اخلاقو صفت نه دی . په دې چې ښه یا بده کړنه خو طبیعتاً د هر انسان له لاسه خېژي تر هغو چې دغه نیکي ظاهره نه سي دې ته غوره اخلاق نه سو ویلای .

۳ . ښه والی یا نیکي پېژندل هم کوم غوره اخلاق نه دي .

۴ . په باطن او نفس کې داسې قابلیت او داسې استعداد پیدا کېدل چې نفس په باطني ډول سره و سخاوت ته اماده کړي نو د نفس د دغه استعداد نوم اخلاق دي .

په باطن کې د څلورو څواکونو کوم چې علم، غضب، خواهش او عدل نومیږي په دې ټولو کې اعتدال ضروري دی . په دغو څواکونو کې د علم کار دا دی چې انسان د علم په ذریعه په رښتیا، درواغو، د عقیدې په حق او ناحقه او نورو ښو او بدو کارونو باندي پوهیږي او د دغه علم په نتیجه کې په انسان کې حکمت پیدا کیږي . د غضب څواک او د خواهش څواک ښیګڼې بیا دا دي چې هغه دواړه د حکمت تابع وي . یعني د هغو عمل د حکمت تر حکم لاندي وي . دلته د عدل د څواک کار دا دی چې غضب او خواهشات د عقل او طبیعت تابع کړي .

د یو انسان دننه چې دا څلور څواکونه میانه روه وي نو د هغه انسان اخلاق غوره بلل کیږي . د غضب څواک که چیري پر اعتدال باندي وي نو و دې ته شجاعت ویل کیږي . د خواهش څواک که چیري پر اعتدال باندي وي نو و دې ته د عفت او پاکلمنی نوم ور کول کیږي . اوس که چیري دغه د غضب څواک تر اعتدال د پر سي نو دا زړه ورتیا ده او که چیري تر اعتدال لږ وي بزدلي ده په دغه ډول سره که چیري د خواهشاتو څواک د اعتدال څخه واوړي نو حرص او شوخي ده، او که تر اعتدال لږ وي نو د کار او طبیعت بند بدل دي او د حکمت کار دا دی که چیري هغه د غلط مطلب له پاره استعمال سي نو مکروه او خطا یستل دي او که په حکمت کې لږوالی راسي نو دا بې عقلي او ناپوهي ده .

په هڅه او زیار د اخلاقو بدلون :

ځیني خلک د نفس د بد یو په پوهېدلو سربېره دا وایي چې د کوښښ او زحمت په وسیله د اخلاقو سمېدل نامکنه دي . دا خلک هغه خلک دي کوم چې نه غواړي غوره اخلاق ولري . دا خلک وایي چې طبیعت تغیر نه خوري . په څه ډول سره چې ظاهري عیبونه د قد اوږدوالی، ټیټ والی، بدرنګوالی او داسې نور و بدلول نامکنه دي په دغه ډول سره د باطن بدوالی هم نه سي بدلېدای . هر څونه کوښښ چې وسي نتیجه به یې هیڅ وي . داسې انسانانو ته شاید دا نه وي معلومه چې په کوښښ او زحمت باندي خو انسان څه کوې حیوان لا تغیر نه خوري . د ځنګلي حیواناتو سره چې زیار و کښل سي ښه تربیه ور کړل سي نو د هغو هم یو څه زده کیږي، آیا دا بدلون نه دی؟

په اصل کې ځیني شیان له لویه سره بشپړ وي یعني په هغو کې هر ضروري شی موجود وي . و هغو ته د زیار ایستلو هیڅ ضرورت نه وي او په ځینو شیانو کې د بدلون استعداد او قابلیت موجود وي . په لږ څه زیار کښلو سره په هغو کې بدلون راځي . لکه د شفتالو څونه چې پخپله نه مېوه ده او نه ونه، لیکن په دې که دا استعداد سته چې په لږ زیار ایستلو سره د دې څخه ونه جوړه سي . په دې کې د ونې جوړېدو قابلیت موجود دی . خو دا څونه که د مېوې په شکل بدلول غواړي نو دا ممکنه نه ده په دې کې یې دا وړتیا نه ده ایښې . نو چې یو بې روحه شی بدلېدای سي نو د غضب او خواهش تبدلېدل په زیار سره ولې نامکنه دي .

هو ! زموږ هیڅکله دا مطلب نه دی چې دا څواکونه دې له منځه یووړه سي او ختم دې سي . په دې چې غضب او خواهش که هر څومره بد هم وي خو کله کله موږ ته د دې ضرورت هم پیدا کیږي، که چیري غوښتنه یا خواهش نه وای نو خوړل، څښتل، سفر، آرام او تفریح به ختم وای او له ژوند څخه به مو عذاب جوړ وای . که چیري غضب نه وای نو انسان به خپل دښمن ته دښمن څنګه ویلای او د هغه دفاع به یې څنګه کولای . نو د دې له پاره هغه قطعي ختمول ښه کار نه دی خو باید میانه روي پکښې راسي، نو نتیجتاً دا ویلای سو چې په پرله پسې هڅه او زیار سره د اخلاقو سمېدل ممکن دي .

د غوره اخلاقو لاري چاري :

اخلاق په انسان کې د څو څواکونو د اعتدال نوم دی . دا چې دا اعتدال یا میانه روي څنګه تر لاسه کېدای سي. دوې لاري لري :

لومړی دا چې د انسان عقل د غضب او غوښتنو پر څواکونو باندي غالب سي او هر کله په پوهې او هوښیاري سره تر سره سي تر څو عقل د غضب تابع وي او او د خواهشاتو له څواکونو څخه په امان وي .

دوهمه لاره يې د ناوړه عادتونو پرېښوول دي او د ښو خويونو پيدا کول دي . مثلاً : يو څوک د سخاوت خوی پيدا کول غواړي نو په پيل کې هغه ته په کار دي چې د سخيانو په شان مال خرڅ کړي . خپل پر نفس باندې زور راوړي چې دا کار په پرله پسې توګه وکړي. تر يو څو ورځو وروسته دا کار عادت کيږي او د هغه په طبيعت کې سخاوت ځای نيسي .

په همدې ډول سره په عادت کېدای سي انسان ته دا کارونه ښه خوند ورکړي، مثلاً سخي هغه ته ويل کيږي چې د مال تر خرڅولو وروسته هغه ته خوند ورکړي، داسې نه چې د مال تر خرڅولو وروسته هغه افسوس وکړي . نو تر هغه وخته پورې چې نفس بد پرې نږدې او د ښو عادتونو سره عادت نه سي تر هغه وخته پورې اخلاق په نفس کې نه سي پيدا کېدای . مګر د دې دا مطلب نه دی چې يو کار مو عادت نه سي نو څوک دې ښو کارونو او نېکيو ته لاس هم نه ور وړي . دا خبره په ثبوت رسېدلې ده چې تر عادت کېدو وروسته انسان د هغه کار په کولو چې عادت وي ښه خوند ورکوي که څه هم هغه د يو بد کار عادت وي او په هغه کې زيات زحمت هم وي . کوتربازي قمار يا داسې نور . نو په دې کارونو کې ځومره سختې او شرمندګې سته . ځومره شته په ضايع کيږي . مګر عادت دا ټوله تکليفونه په خوند او لذت بدلوي .

نو کله چې د بدو کړو په عادتولو سره نفس خوند اخلي نو ښه والې خو نفس بيخي قبلوي . نو دا ثابته سوه چې اخلاق چې لر زيار او زحمت ايستلو باندې هم حاصليږي .

د غوره اخلاقو صافه او ښکاره لار څه ده؟

د روغ نفس نخښه دا ده چې په هغه کې د اخلاقو ښېګڼې پيدا سي او په ټولو باطني ځواکونو کې يې اعتدال وي او د ناروغ او خراب نفس علاج دا دی چې د هغه څخه رزالت او بد کارونه ليرې کړل سي . لکه د ښه بدن له پاره دا ضروري ده چې له ناروغۍ څخه ليرې واوسي . څرنګه چې بدن په پيل کې بشپړ نه وي خو د ودې، پرمختګ د تر لاسه کولو استعداد په هغه کې وي چې په غذا او تربيې سره بشپړه کيږي . همداسې په نفس کې د حظ حاصلولو استعداد وي چې په پاکي، غوره اخلاقو او د علم په تر لاسه کولو سره بشپړيږي .

د انسان بدن که چيرې روغ رمټ وي نو هغه د خپلې روغتيا ساتنه کوي او که چيرې ناروغه وي نو د ناروغۍ مخنيوی کوي . دغسې د انسان نفس که چيرې ناروغه وي نو د هغه د صحت وخواته بايد چې فکر وکړل سي او که چيرې روغ وي و هغه ته په نېکيو کولو باندې لا خواکمن کړي .

په څه ډول سره چې د بدن د ناروغيو علاج عموماً د مرض پر ضد باندې کيږي . د مثال په ډول د ساړه علاج په تودوخه کيږي . دغه رنګه د جهالت علاج په علم، د بخيلۍ علاج په سخاوت، د غرور علاج په تواضع باندې بايد وسي . څه ډول چې بدني ناروغيو کې پرهېز او دوا ته اړتيا لري . نو همداسې په سختې کې صبر کول په کار دي تر ځو نفس په سمه لار روان سي .

د غوره اخلاقو نخښې څه دي؟

انسان چې کله د نېکۍ پر لار باندې روان سي نو هر ګړی و ده ته د دې خبرې بېره وي چې د ده دننه تکبر يا لويي پيدا نسي او هغه دا وايي چې اوس نو زه نېک عمله سوم . اوس ما ته د زيار ايستلو اړتيا هم نسته . د دې له پاره د نېک او با اخلاقه خلکو لږ علامې ذکر سوي دي چې داسې خلک پر خپلو خواهشاتو باندې په بشپړه ډول سره اختيار لري . د امانت ساتنه کوي، ژمنه چې يې کړې وي هغه پوره کوي، خپل عبادت د زړه له اخلاصه کوي . د خلکو سره په نرمي او سمه سره چلند او خبرې کوي .

د يو ښه مسلمان نښې يې دا ښوولې دي چې هغه چې هر شی د ځان له پاره خوښوي هغه د خپل بل ورور له پاره هم خوښ کړي . خپل د مېلمنو عزت دي کوي . ښه خبره دي کوي او يا دې پټه خوله واوسي . په غم او مصيبت کې دي د نورو په درد وخوري، د چا زړه دې نه آزاروي . د ډېرو خبرو څخه دې ځان وساتي . رښتيا ويونکی، نېک عمله، نرم مزاجه، د دوستانو ښه دوست، خوشحاله او مهربانه دې وي، بدقوله، بدعمله او ښکنځونکي بايد چې نه وي، د خلکو بد ويونکی دې نه وي، خلک دې نه خطاباسي . کينه دې نه کوي، د حسد څخه دې ځان وساتي .

د غوره اخلاقو څښتنان په دې آزمويل کېدای سي چې هغه تر کومه ځايه پر تکليفونو باندې صبر کولای سي . که چيرې يو څوک پر تکليفونو او يا د نورو پر بداخلاقي باندې ګيله کوي، د دې مطلب دا دی چې په هغه کې صبر او اخلاق نسته .

يو وخت يو نېک سړی يو چا ډوډۍ ته راوغوښتی کله چې نېک سړی دهغه و کور ته ورغی نو هغه معذرت وغوښتی چې بخښنه

غواړم زما په کور کي اوس هيڅ نسته . نېک سړي چي دا واوريده نو بيرته رهي سو . بله ډېر تللی و نو هغه سړي بيرته ور ناري کړې چي راسه هر څه چي په کور کي وي هغه به سره وخورو . نو دا سړي دوباره د هغه کور ته ورغی . د کور څښتن د نېک سړي په پښو کي ورولوېدی او بخښنه يې ځني وغوښتل چي ما امتحان اخيستی .

نېک سړي ور ته وويل چي وروره په دې کي د بخښني څه خبره ده ، زما کار خو دا دی چي که مو وغوښتم . در ځم او که مو وشړلم در څخه ځم . د دغه نېک سړي يوه بله کيسه داسي ده :

يو وخت پر لاري روان و يو چا د بام څخه ايري ورباندي راتوی کړې ، نېک سړي هغه د ځان څخه ايسته کړې او کالي يې ټکوهل او بيرته رهي سو . نو خلکو ور ته وويل چي تا و هغه سړي ته ولې هيڅ ونه ويل ؟ نو ده ور ته وويل چي زه خو د اور مستحق وم ده خو لا ايري راباندي توی کړې .

څو خبري داسي دي چي و هغه ته غوره اخلاق ويلای سو : انصاف ، انتقام نه اخيستل ، گناهونه بد گڼل ، په ستونزو کي صبر کول ، نفس هر وخت ملامتول . د نورو پر عيبونو باندي ستر گي پټول ، او خپل پر عيبونو باندي نظر کول . د لوی او کوچني سره په ښه رويه خبر کول ټول غوره اخلاق بللای سو .



## د شوراگانو ، سياسي گوندونو او . . . .

مصيبتونه زېږوي چي بېلگي يې په پراخه پيمانه زموږ په هيواد کي پېښي سوي او د افغان ملت پر طاعون بدل سوي دي .

لکه چي مخکي ذکر سوه داسي حزبونه او تنظيمونه ملي او وگړني بنياد نه لري ، نو ځکه په قومي ، ژبنيو ، نژادي ، محلي ، مذهبي او نورو وسايلو باندي تکيه کوي او د سياسي بې کفايتی له امله اکثراً استبداد ته مخه کوي . دغه سکتاريستي ، ناسيوناليستي او مذهبي ډلي کله کله فاشيستي تگلاره خپلوي او هغه اهداف تعقيبوي کوم چي د دوی سرچينې يې غواړي .

په افغانستان کي د تيرو تجربو په دقيقه توجه سره دا حقيقت څرگنديږي چي افغاني ټولنه يوه ځانگړې ټولنه ده نو ځکه د افغانانو خاص سيکولوژيکي او سوسيولوژيکي څېړني او تحقيق ته ضرورت دی . د افغانستان تاريخ ، دود او دستور ، د ژوندانه طريقې دا ټول ايجابوي چي په دې هيواد کي جرگې او شوراگاني د مناسبي مدني ټولني بنيادونه جوړولای سي . نو لازمه ده چي د حزبونو پر ځای د شوراگانو تشکل ، ودې او انکشاف ته پاملرنه وسي ، تر څو د افغاني او اسلامي سنتونو ، دودونو ، ملي او تاريخي ارزښتونو پر اساس د دې زمينه برابره سي چي مستقل افغاني سياسي گوندونه چي پر ملي هويت او افغانيت ولاړ وي رامنځته سي او په متمدن ډول د سياسي مبارزې ډگر ته وړاندي سي . دغه مستقل ملي افغاني نهادونه به وکولای سي چي د افغانستان په راتلونکي کي مؤثره ونډه واخلي . سوله ، دموکراسي او ولسواکي تامين کاندي . د خلکو د اساسي او مدني حقونو د تحقق او تضمين عامل وگرځي او په هيواد کي د پرمختگ او ترقۍ لاره پرانيزي .



له اوو يوناني پوهانو څخه يې پوښتنه وکړه چي بشپړ حکومتونه کوم دي ؟

فيلسوف ساليس مليسوسي وويل : "هغه حکومت چي د ښيانو برابري پکښې وي" . سولون مقنن اتني وويل : "هغه چي يوه انسان ته ښکنځل کول پر ټولو اغېزه وکړي" . بياس وويل :

"هغه چي قانون د حاکم پر ځای کار وکړي" .

پتياگورس وويل : "هغه چي د حکومت واگي د سپېڅلو خلکو په لاس کي وي" . گليوبوس وويل :

"هغه چي د ملامتی ډار يې تر قانون زيات وي" . خيلسون وويل : "هغه چي قانون د خطيب پر ځای وينا وکړي .

سرمامدرس له دې خبرو څخه داسي نتيجه واخيستله وې ويل : "چي داسي ده نو بايد چي د پارسا پوهان حکومت وکړي" .

# جهاني

## په کندهار کښې

۱۳۸۴/۲/۱۴ ل

د روان کال د غوايي پر څوارلسمه نېټه په تېرو درو کلونو کښې په پرله پسې توګه د درېيم ځل له پاره د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست په نوښت او د دوی د هلوځلو او سترياوو په برکت په هيواد کښې د او سمهال سرواله شاعر ښاغلي عبدالباري جهاني په وياړ د يوې درنې شاعرانه غونډې له پاره لاره هواره سوه . د همدې نېټې په ماپښين دغې غونډې ته رابلل سوي سړي او د ښاغلي جهاني د شعر په سلګونو مينه وال د ښاروالۍ د غونډو لويې خونې ته په راتلو سوه .

په دې لويه غونډه کښې د ښاغلي جهاني په ګډون ، ښاغلو ډاکټر عبدالرازق پالوال ، ډاکټر طارق رشاد ، ډاکټر عبدالواحد نظري ، ډاکټر شاه ولي پوپل ، الحاج عبدالحميد کرزي ، محمد کريم خان اڅکزي ، د قومونو او قبايلو رئيس عبدالباقي رغبت ، کندهار ښاروال زمري عثمان ، د ښاروالۍ مرستيال استاد عزيز الله يارمل ، د ښکلا مجلې چلوونکي عبدالقديم پتيال ، انجينر محمد کريم ، د کندهار مجلې مرستيال چلوونکي مطيع الله روهيال ، د نارنج خپرندويه ټولنې مشر سيد احمد قانع ، نورمحمد صاحبدل ، د ګروال محمدصادق ، د هيواد ټولنې مشر محمدسرور حسنيار ، ملي سوداګر حاجي عبدالظاهر ، محمدانور انورزي ، حاجي عبدالرحمن هوتک ، استاد عبدالصمد نظري ، مولوي شهاب الدين او سلګونو نورو پوهانو ، ليکوالانو ، شاعرانو او د شعر مينانو هم شتون درلود .

کله چې د جهاني د شعر مينه وال په دې لويه خونه کښې په ګڼ شمېر ځای پر ځای سول خوږ ژبي وياند ډاکټر احمدجاويد سعادت د خبرو د هغه مېز تر شاه راڅرګند سو چې ملي بيرغ يې تر څنګ او شاته يې پر يوه ښکلي ټوکريزه دره ليکل سوي وه :

کندهار مي د بابا په قباله دی
که پنجشېر دی که واخان دی وطن زما دی
هره لوېشت مي د نيکه او بابا کور دی
پر هر ګام باندي لحد او کفن زما دی
سرداري يې زما په پچه ده ختلې
له آمو تر مست هلمنده مأمن زما دی
که تاجک دی که ازبک دی يو افغان دی
د دې خاوري هزاره ترکمن زما دی

هغوی په لوړ او اغېزمن ږغ د غونډې د پيل څرګندونه وکړه او ورسره جوخت يې داسي وويل :

"پر افغان او افغانيت د مين لوړ او ملي شاعر عبدالباري جهاني په وياړ مشاعرې ته راغلو مېلمنو قدمونه مو پر لېمو ، ستاسو د غونډې د روند مېلمه ښاغلی عبدالباري جهاني دی . . . له هغو څخه به واورو چې پر کومو وروکو مو ګرځوي . . . د چا د فرياده مو خبروي او د

کوم منبره د کوم چا شور راپورته کوي . . . د دوی په فطرت کې خالق ګکری د نورو سجدو ته نه ده پیدا کړې . . . د هغوی په قلم کښي استعداد پروت دی .

خولوی ښتن ﷺ دي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د درونده مشر عبدالمجید بابي دا فرهنګي نوښت د نیکۍ په تله کي په څو چنده ورته حساب کړي چي د پخوا په څېر یې درونده جهاني او تاسو په یو شعر غونډه کښي د یوه تږغر د پاسه رابللي یاست .

راځئ د ښاغلي جهاني یې واورو :" .

وروسته یوه د لږ عمر ښتن ځلمي ته د رحماني په نوم بلنه ورکړه سوه څو دا شعر غونډه د سپېڅلي قرآن د

چي د جهاني غوندي د یوه جهاني شاعر په سرواله ګډون سره یوه پراخه شعري غونډه رابولي . . . نن دلته ادبي ښکلا زېږي . . . نن دلته د ادب مرغلري په ادبي ګامونو د زړونو د کورونو پر لور ځان رارسوي، دا نه یوازي موږ بلکي ټولو فرهنګي سړیو او کړیو په وروستۍ محاسبه کښي ټوله کندهار ته د ویاړ خبره ده .

. . . ښاغلي شعر پاللي او د پختیا تر پولي یې رسولی دی . . . د هغوی شعر ښکلی او منلی دی . . . شعر د هغوی د فکر او ذکر مشغولا ده . . . په دغو بوختیاوو کښي جهاني د لوړ تخیل تر هغي کچي ځان ورساوه چي له ځانه یې جهان ته لاس وغځاوه . . . او په




سپېڅلو آیاتونو په لوستلو سره پیل او لا یې نوراني وګرځوي . کله چي د قرآن مجید آیاتونه ولوستل سوه د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي ته بلنه ورکړه سوه څو د پرانستونکي وینا او د هغې سره جوخت د عبدالباري جهاني پر ژوند لیک د رڼا اچوني پېرزوینه وکړي .

ښاغلي عبدالمجید بابي پخپله وینا کښي وویل :

"د هیواد د شعر او شاعرۍ په هسک کښي ځلېدونکې ستورې، د شاعرانو منلې شاعره درونده وروره جهاني صاحب !

د کندهار ولایت د فرهنګي جرګې مخورو پوهانو، پتمنو مشرانو، استادانو، ښاغلو لیکوالانو، شاعرانو، د قلم ښتنانو، د شعر او ادب مینه والو او د ښاروالۍ ریاست د غونډو همدې لویي خوني ته ټولو راغلو ورڼو !

په درناوي او زیاتو سلامونو مو لمانځم

ستاسو د راتګ له پاره د پښتني دود سره سم ښه راغلاست، هر کله راسئ او ستړي مه سي کلمات تازه کوم . خوښ یم چي په تیرو درو کلونو کښي د دریم ځل له پاره د اطلاعاتو کلتور ریاست دا لوی ویاړ تر لاسه کوي

دې توګه که د ځان و د جهان سو . . . د خپلو خلکو کړاوونو تر دې پولي وځوراوه چي ځان ځني هېر او په بېوزلۍ کښي یې هغو ته د تسل زیاتي مرغلري ولورولې . . . په جهاني د هیواد د اوسمهال پښتو شعر ویاړي، که دا ټوله خبري په څو لنډو ټکو کښي راونغاړو باید ووایو چي جهاني یو استعداد دی .

ورپسې ښاغلي ډاکټر طارق رشاد د ښاغلي جهاني د شعرونو پر ځینو ځانګړو سمبولونو وږغېد، هغوی وویل :

"د افغان کلتور او د شعر او ادب مینانو !

زه د دې غونډي جوړېدونکو ته مبارکي وایم چي د پښتو د معاصر شعر خوږ ژبي او پېژندل سوي شاعر ته یې دا غونډه سمبال کړېده، زه دوی ته په دې لاره کښي نور هم بریالیتوب غواړم . . . ".

هغوی د خپلو خبرو په یوه بله برخه کښي وویل :

"جهاني د ښکلا ذوقي تنده ماتوي . . . ځکه د ده شعر د ژوند او خوند شعر دی . . . توري د خیال په مزي پېیي . . . د یاغیتوب تر څنګ د نوښت ښکلا هم د هغوی

په شعر کښې سته . . . د جهاني شعر د عاطفې، تخيل او طغيان څخه ډک دی چې هم يې د هيوادوالو په بده ورځ ژړلي او هم يې د ښکلو په بازار کښې په کټ کټ خندلي دي . . .

د جهاني د شعر لويه ځانګړتيا د هغه د شعر سمبوليک جوړښتونه دي، ډېر ښکلي او څو يې په لاندې ډول يادولای سم :

د خيالونو په کوثر اوبېده، شهباز خوله خوله کېده، د زخمونو تورول، په رګونو کې ساه وچېدل، د خيالونو د وزر وچېدل، پر آواز د مرګي مېلمه کېدل، بې رنګه مستي تخنول، اوښکو ته اتڼ ښوول، اوښکي په سترګو کې زندۍ کېدل، تقوا لمبه کېدل، توبه ويده کېدل، په طواف کې توبه ماتېدل او نور . . . " .

تر ښاغلي طارق وروسته ډاکټر سعادت بيا د خبرو د مېز شاته ودرېد، د هغوی څخه يې مننه وکړه او د دغه څو خوږو ټکو تر څرګندولو وروسته يې د ښکلا مجلې مشر عبدالقديم پتيال ته بلنه ورکړه څو د جهاني د شعري ژباړو په اړه وږغېږي .

دلته که شونډې لندوې ملګرو نه به راځي
په دې روژې پسې روژې راځي اختر نه لري

د ډاکټر سعادت تر همدې بيت وروسته ښاغلي پتيال د خپلو خبرو په يوه برخه کښې وويل :

"زه فکر کوم د جهاني پر شعر کار نه دی سوی، ما د دوی د هنر پر يوه اړخ ياني شعري ژباړوڅه لنډه ليکنه کړېده .

. . . زما له نظره په منظومو ژباړو کې تر هر چا جهاني ډېر کار کړی دی . . . هم يې د شعر په انتخاب او هم ژباړه کې د احتياط څخه کار اخيستی دی . که د ده شعري ژباړې وکتل سي دغه دواړو اړخو ته يې پوره پاملرنه کړېده او که د دوی شعري ژباړې وکتل سي څوک فکر نه کوي چې هغه دي ژباړه وي . . . .

د شخو ياغي چيغه ، امريکا دي آباده وي. پسرلی سرکال وخندېدی. طلاق. زما لار، بېګانه په نيمه شپه کې. د بنګلو نجلی او نور د دوی ښې شعري ژباړې دي .

. . . جهاني پښتو ادب ته د پاندېوادبياتو څخه ډېر څه راوړي دي . د هغوی ژباړه هم د کيفيت او هم د کميت له مخي پوره ده . . . جهاني د اردو اشعار هم کټ مټ لکه د انګرېزي څخه چې يې ژباړي کړي دي ژباړلي دي . د خيام د څلوريزو ژباړه خو يې ماته تر ټولو ښه ښکاري " .

تر ښاغلي پتيال وروسته د ويناوو برخه پای ته ورسېده او د مشاعرې باندار په دې ډول پيل سو، چې لومړي څو تنو کندهاري ځوانانو خپل شعرونه واورول او په دې ډله کښې لومړی سړی ښاغلي حسنيار و . هغوی تر لنډو يادونو او ګيلو وروسته دوې ټوټې شعرونه واورول، لومړی يې داسي پيل کېدی :

لـــکه لــــميه چې پر سر تار نه پرېږدي
داسي مې زړه په زړه کې ډار نه پرېږدي

او همدارنګه د بلي غزلې پيل يې داسي و :

څومره هنر دی چې د خپّم تر غره ځان اړوي
د خاموشۍ بېړۍ د قــــهر تر توپان اړوي
پخوا مې نه لوېدی و زړه ته د ډالرو طاقت
اوس يې منم د يو افغان څه بل افغان اړوي

د مشاعرې دوهم شاعر ښاغلی پتيال و . هغوی هم دوې ټوټې شعرونه واورول . د لومړي شعر لومړۍ برخه يې داسي وړاندې کړه :

سره جامونه راسره دي خالي لاس نه يم راغــلی
ګــــناهونه راسره دي خالي لاس نه يم راغلی
مجلس سوړ نه کړئ يارانو يو ګړی لا صبر وکړئ
بل اورونه راسره دي خـــالي لاس نه يم راغـــلی

او د دوهم شعر په وروستۍ برخه کښې يې داسي وويل :

نه جنت مو يې پـــــکار دی، نې دوږخ څخه بېرېږو
بس رضا کــــې د نــــګار مو تلوسه ده پته پته
په تصوير د مست پتيال کې نور څه مه لټوئ خلکو!
دې انـــځور کې د انـــکار يو تــرانه ده پته پته

دريم څوک چې د ويناوو د مېز شاته راوبلل سو هغه ځوان شاعر ښاغلی هڅيال و . هغوی وويل چې ما و جهاني ته يوه بوللـه ويلې ده، چې د اوږدوالي له مخې يې يوه برخه اورول غواړم :

هغوی د خپلې بوللي په يوه برخه کښې داسي وويل :

د فطرت سندريز شور دی سو بـــهار غزل غزل
را اورېږي مـــې د زړه پر هسک منار غزل غزل
د بيديا د پېغلې خړ اننګي بيا د غاټول ګل سوه
رنګ د شونډو ورته ورکړه سره انار غزل غـــزل

او د بوللي په وروستۍ برخه کښې يې داسي وويل :

د سندرو ستر جهان ته سندريزې نغمې وايم
جهاني ته به ډالۍ کړم خپل شهکار غزل غزل

او ورسره سم د غونډي ویاند و یوه بل ځوان شاعر ښاغلي ستوري ته بلنه ورکړه، هغوی د خپل شعر پیل داسي وکړ:

زما د زړه کب دي د ښائو په تور جـنـګک ونـیـوی
په زړه ظالمي خلاص به نه سي ډېر دي کلک ونیوی
په دغه کړنه دي په والله ډېر خوشـحاله سـولم
چي و رقیب ته دي د خولې پر ځای جرتک ونـیوی

وروسته د کندهار ننداري مشر فضل احمد انیس ته بلنه ورکړه سوه، هغوی یوه خندوونکې څلوریځه وویل، او ورسره سمدلاسه جرس ته بلنه ورکړه سوه، ښاغلي جرس خپل شعر داسي پیل کړ:

څرنـګه چي وایي بس منم به یې
زړه مي یې لاس راکه چي قوي سمه

او په بله برخه کښي یې وویل:

میني ته مي زړه د کور ورکـړی دی
ومي وینه ښایي لا قـــاني سمه
ـــتا د یو نظر په تمه ژوند کوم
اې پښتنې پېغلي در واري ســمه
هر یو هیوادوال مي دی د سترګو تور
زر واري قربان تر کـندهاري سمه

تر جرس وروسته: د کندهار د ځوانو شاعرانو او ښاغلي جهاني د شعرونو د اورولو تر منځ د یوې لنډې مودې له پاره د کندهار د باختر آژانس مرستیال ښاغلي نورمحمد صاحبدل ته بلنه ورکړه سوه څو د هارمونیم په ملتیا برخوالو ته سندري ووایي.

ښاغلي صاحبدل د ښاغلي عبدالمجید بابي دوې ټوټې شعرونه د هارمونیم په ملتیا په ښکلي بږغ سره د غونډي برخوالو ته واورول او د دوی لخوا د دواړو شعري ټوټو ویل په چکچکو او تودو ولولو سره بدرګه سوه، هغوی په لومړی سندره کښي دا شعر زمزمه کاوه:

راسه غاړه وګوره ګرالبي تش تارونه سوه
بږغ د اناالـحق راته پرې او دارونه سوه

او په دوهمه سندره کښي یې دا شعر زمزمه کاوه:

رانه وادي خیـستل روح او بشر دواړه
راته اور دي کړه ماښام او سحر دواړه

کله چي د اوسمهال د پښتو شعر وځلاند ستوري ښاغلي جهاني ته د شعرونو د اورولو بلنه ورکړه سوه د ښاروالۍ تالار د لاسونو د کړپېدو بږغ پر سر واخیست. د غونډي په سرواله ځای کښي درنو مشرانو هر یوه د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي، کندهار ښاروال زمري عثمان، د قبایلو رئیس عبدالباقي رغبت، د کندهار فرهنګپاله سوداګر حاجي عبدالظاهر، ډاکټر عبدالرازق پالوال، ډاکټر طارق رشاد، محمد کریم خان اڅکزی، الحاج عبدالحمید کرزی، ډګر محمدصادق او نورو د دوی په درناوي د وینا د مېز تر څنګ د دوی د رسېدو په مهال کښي د تالار د ټولو برخوالو سره یوځای د لاسونو د کړپېدو سره د دوی هر کلي وکړ.

ښاغلي جهاني د شعرونو تر اورولو دمخه وویل:

رښتیا هم لکه بابي صاحب چي اشاره ورته وکړه دا درېیم پرله پسې کال دی چي د اطلاعاتو کلتور ریاست لخوا په دغسي شاندارو غونډو کي برخه لرم. زه یې د منني له پاره او د احساس د انتقال له پاره الفاظ نه لرم. زه هغو کسانو خصوصاً بابي صاحب ته چي د دې غونډي په رابللو کي یې زیار ګاللی مننه کوم، دوعا ورته کوم او مبارکي ورته وایم.

تر همدې لنډو خبرو وروسته هغوی وویل لومړی به یوه قصیده درته ووایم چي سرلیک یې دی: (بیا راغلی پسرلی دی) دغه پسرلني قصیده د خوشحال بابا د پسرلنی قصیدې په اکتفاء جوړه سوې ده.

د دې قصیدې پیل داسي و:

بیا راغلی پر وطن دی نوبـــهار
بیا نسیم غونډي شیندلي پر ګلزار
شپې ځولی د پرخو راوړې تر ګلونو
غېږه ډکه له شبنم اخلي ســهار

په یوه بله برخه کښي یې داسي راغلي وه:

د کلات پر خړه خاوره لمــبې ناځي
د بادام ونو سپرلي دي اتـــګار
شګوفو یې له سالو دی رنګ اخیستی
که سالو ته شګوفو کـړ رنګ تیار

او همدارنګه د قصیدې په بله برخه کښي د کندهار په اړه ویل سوي وه:

سره غورځکه ده د زړه د ارغنداو کي
کــندهار راوړي ګلونه د انار
د نارنج او د بادام په ســیالي وزي
را ایستلي یې ښـاخونه دي ګلنار

دوهمه ټوټه شعر یې وروستی ماښام، درېیم یې د داستان په ډول د (عدالت) تر سرلیک لاندي شعر و چي پیل یې داسي و:

پخوانیو زمانو کـــي یو هیواد و
په مابین د لویو غرونو کي آباد و

**څلرمه ټوټه یې هم همداسي راپیل کړه :**

د قلم په ژبه پوه یم چي پرېشان خـــــوبونه وینم
د وصال پر مړوند پروت یم د هجران خوبونه وینم

**د ښاغلي جهاني پنځمه ټوټه شعر چي واوراوه سرلیک یې (د رنګ برخه) وه او پیل یې داسي و :**

خدایه کاشکي مي د عرش په کنګرو کي
لوړ له ســتورو پاس په جګو آسمانو کي
پاس د ټولو جـنتونو دوږخـــــــونو
ستا د ځان ستا د قدرت په آئـــینو کي

**د دوی شپږمه ټوټه شعر یو داستان واو سرلیک یې (هغه آش هغه کاسه) و .**

**اوومه ټوټه شعر یې ډېر په زړه پوري وچي دنورو شعرونو تـر ځـنګ یـې پـر دې شعر بانـدي ډېـر لاسونه وکړېدل . داچي د دې تورولیکونکي هم د دې شعر تر سختي اغیزي لاندي راغلی نو یې په بشپړه توګه وړاندي کوم :**

تن مي د خـیال پر ځګندن باندي خـــولې راوله
وروستي خمار ته مي یو عـــــکس د پیالې راوله
چي د زاهد پر سترګو وکړي په لـــــپو اغـزي
تړي ګـــودر ته مي بیا پېغلي سلــــــلې راولـه
زه مي نصیب د ژوند په کـــور کي خندولی نه یم
د خـــــــیال پاتا ته مي څو سوي غلبلې راوله
د قلندر په څېر مي ننګ دی په کچکول کي اینبی
راته جـــانانه د دیدن تشي وعـــــــدې راوله
پټ د عــــــالم او د رقیب لـه بدو شوخو سترګو
پر وینبو شـــــپو مي د یادونو جـــــنازې راوله
ستا د بېلتون د وینبو شپو قصه نیمګړې نه سي
خوږمنو سترګـــو ته مي څو اوبنـــکي تودې راوله
خـــدای په امان "جـــــهاني" ولاړمه بیا نه راځمه
پرد ېس مـــزار ته مي یو نذر د ډېـــوې راوله

**د ښاغلي جهاني نهمه ټوټه شعر بیا هم یوه خوږه او خوندوره غزل وه، چي پیل یې داسي و :**

تن خــــــــمه د تندي سره قولونه ماتوم
سجدې ته وم راغلی مـــــــحرابونه ماتوم
چي بیا دي د وعدې سره پلمې نه وي اوډلي
پر ژبه د رویبار باندي لــــــوظونه ماتوم

**د هغوی د خوږو شعرونو د اورولو شمېره چي ولسو ته ورسېده، دهمدې شعر سرلیک یې و (پیشو بـه خـوک قانع کړي؟) . یوولسم شعر یې هم یوآزاد شعر و، او سرلیک یې (که ته شهید نه وای) و. دوولسم شعر یې د (پېزوان) په نوم و، او دیارلسم شعر یې بیا هم یوه غزل وه او پیل یې داسي و :**

یوه شپه چي دي راپروت و پر سورکو شونډو پېزوان
زه په خـــــوب کي درســـــــره وم تا بللمه جانان
ځلېدله دي خالونه لــــــــکه ســـــــتوري د آسمان
د ســـــپوږمۍ په پلوشو کـــــي ناخبره له خپل ځان

**تـر دې وروسـته چـي پـه شعـر غونـډه کښـي د اورول کېدونکو شعرو څوارلسم شعر سطرنج او پنځلسم یې هم د پېرانانو حمام نومېده، شپاړسم شعر یې ځنځیر نومېده او د هغه په یوه برخه کښي یې وویل :**

زما د عمر په خزان کښي یوه لښته یې د ګــــلو
زما د خیال پر وچه دښته ګلدسته یې د ســـنبلو
د خمار په تړې شپه کي سره پیاله یې د سروګلو

**اوولسم شعر بیا هم یوآزاد شعر و، او سرلیک یې (نوی کـور) و. اتلسم شعر یې (د پاچـا نوي کـالي) تـر سرلیک لانـدي یـو ډېـر د پنـد ځخـه ډک او خـوږ شعـر و . دا مهـال ښاغلی جهاني په شعر ویلو سترې سوی و . خـو د مینه والـو تودو ولولو لا هڅاوه چي خـه را وواییې، هغـوی د ویـل سوو شعرونو شمېره نوولس ته ورسول او د همدې نولسم شعر په یوه برخه کښي یې داسي راغلي وه :**

زړه ځله دي په لار کي پرېوتم پورته کــــــېدم
آذر غوندي مي ځان ته په تندي کي وې تراشلی
د خپل هنر پر ګوتو مي سجده غوندي لــوېدم
د ازېږی د وصـــــــال که د بېلتون و خبر نه وم
چي تاته به درتلمه پر خــــــپل ځـــــان مینېدم

**هغوی چي دا شعر پرانست نو یې وویل چي نور به یې بس کـړو (یار زنـده صحبت بـاقی) کـه ژونـد و بیا بـه سره کښېنو . د هغـوی وروستی شعر چـي شمېره یـې شلو تـه ورسېده تر دې سرلیک لاندي و (خائن مړ دی) دا ډېر اوږد شعر و چي په یوه برخه کښي یې داسي راغلي وه**

ســــهار پر لمر خاته منبر ته وخوت
هغه د ملک د اولـــسونو زمــــري
هـــغه د اور د مـــــیدانو پهـلوان
چي یې ازل پر تندي کـــښلی بری
هــــغه چي وینه یې پیوند د وطن
چي د وطــن مینه یې ژوند و د تن
پاته په (۹۸) مخ کي




# زرپانه

۴

ليکوال: محمد حجازي

ژباړن: عبدالقديم پټيال

"زه د فضل علي سرتيپ د فوځ نوکر يم ، نوم مې جهانشېر دی . پروسږ کال استرآباد ته له پوځ سره ولاړم ، څو روځي وروسته سرتيپ د آق قلعه مامور سو ، يوه شپه ترکمنانو پر موږ شبخون راووړ ، تر سهاره وجنګېدو ، کله چي روښنايي سوه نو وموليدل چي څلورو خواوو ته يې محاصره کړي يو . بيا مو يو او دوه ساعته جنګ ورسره وکړ ، شل دېرش کسه سربازان وژل سوي ول ، سرتيپ وويل چي بايد تسليم سو او بېله دې هيڅ چاره نسته څکه مرسته نه رارسيږي . راغلل او زموږ ټولو لاسونه يې تر شا راوتړل . څلور روځي مو مزل وکړ ، سربازان يې پر څېنو سردارانو خرڅول . څلورمه روځ يې زه او سرتيپ د سردارانو مشر د دې نجلۍ پلار ته راوستلو ، سرتيپ يې د روځي کار ته لېږی ، زه د دغه آس نوکر وټاکل سوم . دغه آس په ترکمن کي ډېر مشهور دی ، وايي چي په زر تومانه ارزي ، پر سردار دا آس تر خپل ځان هم ګران و ، څرنګه چي جګه ونه مي ده ، نو نر او ښځي مي سيل ته راتلل او کله _ کله يې خواړه راته راوړل ، هر څه زاری چي مي ورته وکړې چي د سرتيپ پر ځای د روځي کار ته ولاړ سم ، خو ګټه يې ونکړه ، له شرمه مړ کېدلم .

سرتيپ چي آن سربازانو ته د تمرين له ورکولو يې هم بد راتلل ، اوس يې بايد تر لمر لاندي بدن داغ سوی وای ، دغه بې رحمه يې له سپيني ږيري څخه هم نه شرمېدل ، د شپې چي به بير ته راغلی نو دونه ستړی او ستومان به و ، چي بې هوښه به سو ، ما به يې بدن ورموږی خپل خواړه چي ما به ساتلي ول ، ده ته مي راوړل ، کله چي به پر هوښ راغی نو د خپلو کوچنيانو په باب به يې خبري کولې او تر ستر ګو به يې اوښکي تويېدلې ، يو له بله مو سره ژړل ، ويل يې چي پر دې حاکم دي لعنت وي چي مرسته يې نه راسره وکړه او موږ يې د دغو حيوانانو په لاس ورکړو ، ماشومان مي يتيمان سول . څو روځي وروسته د دې ترکمن سپاره راغلل او فضلعلي خان يې له هغه ځايه بوتلی ، نور په هغه نه يم خبر چي څه په سوي دي . زما ډوډۍ دغي ګلبهار د سردار لور راوړل ، زړه يې زما پر خوارځواکي سوځېدی ، د پښې پر زخم مي يې چي د ځنځير له وجي سوي وه دي ملهم پر ايښوول ، هر وخت چي به يې پلار او ورور نه ول ، راتلله او ډاډ يې راکاوه . زما سره يې ډېره مينه کوله ، او تل يې زما پر سر له عايشي د پلار له مهرمني سره دعوه کوله . مګر پر سردار ګلبهاره تر خپلو ستر ګو ګرانه وه ، هر څه چي هغې کول ښه ول .

یوه روځ راغله او لاس یې په غاړه کې راواچوی او راته ویل
یې ستا سره مینه کوم . لیري مې پوري وهله . غوښتل یې چې ما
دوږخي کړي . په ژړا راځغځه ولاړه او زما زړه یې راوسوځی .
دوې روځې بیا نه راته راغله . عایشې ډوډۍ راته راوړله . هر ځل
چې به مې د گلبهارې پوښتنه ځنې وکړه . شکنځل به یې راته
کول . په گلبهارې پسې دونه خپه سوی وم چې ډوډۍ مې هم
خواته نه کېده . دریمه روځ گلبهاره راغله او ویل یې ولې ډوډۍ
نه خورې؟

ورته ومې ویل چې په تا پسې خپه سوی یم . دا دی او یې
خورم . بیا یې غوښتل چې ځان را نږدې کړي . خو ما کرار له
خانه لیرې کړه . ویې پوښتلم چې زه دې نه یم خوښه؟ ورته ومې
ویل چې ولې نه . خو ته ماته نامحرمه یې . زه نه غواړم چې له
خانه سره یو ځای دې جهنم ته بوزم . که غواړې نو زه به سردار
ته مرکه وکړم . او ځنې وبه دې غواړم . پلار ته یې ورغلم او خبره
مې ورته روښانه کړه . یو ټینگ سوک یې پر دا غوږ ووهلم . زوی
یې توپک راواخیست چې ومې وژني . خو گلبهارې نه
پرېښودې . "

په دغه وخت کې گلبهارې د جهانشېر پر اوږه لاس
ورکېښېښود او ستر گې یې له اوښکو ډکې سوې .

د هغو یو تر بله مینې زما د یوازیتوب او خوارۍ اور را تازه
کړ . په ژړا مې پیل وکړ . جهانشېر راته وویل چې خدای ﷻ دې
صبر درکړي . د لوی خدای ﷻ دربار ډېر ستر دی . مه نهیلی
کېږه .

د یو ماشوم غوندې چې خپل هدف ته د رسېدو په توسن هر
څه منې . هر څه چې ده ویل ما ورسره تکرارول او آرام مې
موندی . ستونی مې خلاص سو او ژړا مې بنده سوه . لکه خپل کار
چې مې د یو خواکمن چا پر غاړه وراچولی وي . لږ څه هوسا
سوم .

ورته ومې ویل چې پاته کیسه هم راته وکړه . ویل یې .
"که گلبهاره نه وای نو هغو به وژلی وای . د سردار له ډېرې
مینې څخه د دې پر ټولو واک چلېدی . هره خبره یې اروېدل
کېده . خو تر هغه وروسته ماته یوازې نه راتله . تل به عایشه
ورسره وه . د عایشې فکر موبل لور ته اړوی او موږ یو تر بله
اشارې کولې . خو موده په دغه ډول تېره سوه . یوه روځ الله
وردي د سردار زوی له خپلي خور سره جگړه کړې وه او پوهېدی
چې زه د گلبهارې خوښېږم . راغی چې ما ووژني .

زه ناست وم د شاله خوا پر سر په توره داسې وټکول سوم
چې نږې مې تر ستر گو توره وایسېده . گلبهاره مې په داد
ورسېده . او زه بېهوښه سوم . یوه میاشت مې د سر تداوي
کېدله . خدای ﷻ نه غوښتل چې مړ سم .

وړمه شپه بیده وم . د ښو په ږغ راوېښ سوم او خیال مې
وکړ چې الله وردي راغلی دی او غواړي مړ مې کړي . له ځایه
جست وغورځېدم گلبهاره وه کرار یې وویل چې زه یم . مه
بېرېږه . در ولاړه سه چې وتښتو .

ورته ومې ویل چې ښه مې په ځنځیر تړلې ده . ویل یې
کیلي مې راوړې ده . کولپ مې خلاص کړ او ځان آزاد راته
ښکاره سو . نه پوهېږم چې څه راوسوه عقل مې له سده ولاړی .
خدای ﷻ دې مې وبخښي . شیطان تېر ایستلم او بېواکه مې
گلبهاره مچ کړه .

پر آس سپاره سوو او مزل مو پیل کړ . ډېر وږي وو . ښه
خوندوره کوفته راسره وه . له خورجینه مو را وایستل او
وموخوړل . گلبهارې یوه غوټه له خورجینه راوایستل . ومې
لیدل چې طلا او سپینه نقره او ژړې او سپینې پیسې او د قضلعلي
خان د الماسو گوتمې یې هم راوړې ده . ومې پېتیل چې دغه
گوتمې پر سرتیپ تر ځان هم گرانه وه . د اروابشادي مېرمنې
یادگار یې و . تل به ورسره وه او د سفر په وخت کې به یې په
بازوبند کې ایښوولې . ماشاالله گلبهاره ډېره ځیرکه ده . د
حرکت پر وخت یې د پلار ټوله خزانه لوټلې وه . مگر ځرنگه چې
پردی مال حرام وي نو زه یې نه خورم . خپله چې هر څه غواړي
ودي یې کړي او ځانته دې جایداد هم رانیسي ".

له گلبهارې څخه مې بد راغلل څکه د شهوت په غوښتنه یې
له ټولو شیانو څخه لاس اخیستی او پلار یې په درد او غوسه کې
پرې ایښی و . په یاد مې سوه چې زریاڼې هم زما په خاطر کټ
مټ عمل کړی وا او ما خوښ کړی و .

دا ډېره طبیعي په نظر راغله چې که یوه نجلی یو ځوک
خوښ کړي . او پلار یې راضي نه وي نو کور او کورنۍ پرېږدي او
په خپل معشوق پسې ولاړه سي . دا مې د عشق او وفادارۍ په
خاطر یو لوی جرئت او قرباني بلله .

کله چې گلبهارې هم دغه کار کړی و . نه پوهېږم چې ولي
مې د فریدون او زریاڼې کیسه تر نظر تېره سوه . او پر جهانشېر
مې زړه وسوځی .

په دغو فکرونو کې وم . جهانشېر وویل چې زموږ حال ستا
تر هغې ښه دی . موږ ژغورل سوي یو او ته تازه په بلا کې لوېدلی
یې . مگر رښتیا ډېره سخته ده چې د چا عزت وړل سوی وي .
اې خوار کیسه ! زړه به دې ځنگه وي . خدای ﷻ دې زغم
درکړي .

انشاء الله چې سرتیپ به هم آزاد سوی وي . تبرېز ته په
مازي رسیدو سره آس . گلبهاره او پیسې ور وراندي کوم . باور
مې دی چې گلبهاره به ماته راوبخښي او واده به سره وکړو
. . .

❀ ❀ ❀

د دې کیسې له اروېدلو څخه مې ځان هېر کړی و . مگر چې
تل ته یې ورسېدم . غم مې څوبرابره سو . څکه چې نېکمرغي مې
د بل چا په غېږه کې لیدل او پر هغوی مې رخه راتله .

جهانشېر راتـه وویـل چـي در ولاړ سئ چي څوڅکـه تر دې ډېر نور نه سو کولای پاته سو، په موږ راپسې دي، ورته ومې ویل چي زه باید زرپاڼه پیدا کړم، ستاسي سره چیري ولاړ سم؟ ویل يې په یوازي ځان په دې بیابان کي کوم ځای ته نه رسیږې، باید ښار ته ولاړ سې او هلته فکر وکړې.

مگر زړه مې غوښتل چي په هغه دښته کي پاتـه سـم، ومرم او د زرپاڼي لـه فکـره خـلاص سـم، د هغـې پیـدا کـول او لـه لاسـه ور کول راته دواړه بلاوي وې.

د جهانشېر ټینگار کومـه گټـه ونکـړه، پـر دې پرېکـړه وسوه چـي د وژل سـوي تـر کمن آس او یـو څـه خـواړه ماتـه راپرېږدي او خپلـه ولاړ سـي. لـه هغـو پیسـو څخـه مـي شـل تومانـه ځانتـه راوگرځول او پاته نوري مې جهانشېر ته ور کړې. ویل يې کـه پـه تهران او یا کوم بل ښار کي څوک لرې خبر به یې کړم. غوښتـل مې د خپلې مغازې پته او یا د ورور نښاني ور کړم، خو پښېمان سوم، خیال مي وکړ چي د ورور د پرېکړو پـه نتیجـه کـي فریـدون چـي د ژانـدرام یـو صاحبمنصب دی خبریږي او هـر ډول چـي وي زرپاڼـه پیـدا کـوي او مـا بـه هـیڅ نـه وي کـړي، زرپاڼـه مـي د ناځرگندو رقیبانو په لاس کي د فریدون تر پیدا کولو غوره گڼلـه . . . ویل مې نه غواړم چي زړه مور مي لـه مصیبتونو خبره سي او بیا به بېله هغې بل څوک نه لرم.

جهانشېر په تبریز کي د فضلعلیخان د کور پتـه راکـړه او زه يې هورې ور وغوښتم.

تر کمنی نجلی د تگ لپاره دونه تلوار او ټینگار کاوه چي دا ځل بیخي بې تابي ځني وسوه چي نور نو له تگ څخه چاره نه وه.

جهانشېر زما لاس رامچ کړ، او ما د هغه بدن، دوی ولاړل او زه یوازي پاته سوم. ومي لیدل چي د میني وروستی ځاځکی مي هم وچښی، او برخه مي لـه دې نړی څخـه پـوره سـوه. خدای ﷻ دي نکړي چي څوک دغه حالت ووېني . . . په هغوی پسي مي وکتل، نور مې د هغې منظرې د لیدلو توان نـه درلـودی، د هغـو د آس د پښو له رِغه مي غوږونه ناآرام ول، د خپلو اوښکو د ځاځکو تنداره مي کوله چي پر مځکه تویېدل. له فریدون سره مي جگړه وه او د زړه په ژبه مي ملامتوی، چي اې بې حقیقته دوسته، زما لـه بدمرغی څخه دي بله خوښي نه لرل؟ مگر ته هغـه نـه یې چي پـه کوچنیوالي کي دي غیرت او ښه والی درلودی، نو بیا ولې دونـه ناځوانه سوې! لـه نېکیو څخـه پښیمـان سوې او د هغـو زړو نېکیو غـچ دې راڅخـه واخیسـتی. تـه لـه لومـړی روځـې بـد وې، د ځوانمردۍ هغـه ځر گندوني دي لـه ځـان خوښونې او غـرور څخـه وې. خدای ﷻ دي په زړه کي لـه ملگري سره د خیانت پـه وجـه اور در واچوي، بدن دي وسوځه. ما غوندي دي روځ د مرگ تر شپې هم وهمناکه سه. بېله د ډبرو او خاورو یوې وحشي چوپتیا پر تـه دي بـل څـه نـه درپاتیږي، معشوقه دي لـه غیـږي درڅخـه واخیستل سسي او پر ناځر گنده ځوا دي درڅخه ور که سي، بېلـه مرگه بله هیله مه درپاتېره. څونـه سخت دی هغـه خیانت چـي ملگری يې چاته ور ورسوي. د دوستی د ښکلي څېرې اړول پـه یو بدرنگه او پلیت صورت بدلیږي او د چا خاطر ور اریانوي.

د انسان اروا د انقلاب لـه دغـه ډول کشمکش څخه خونړۍ بڼه خپلوي خو په کراره ــ کراره عادتیږي.

کله چي مي وکتل ومي لیدل چي لـه هغـو بېلـه یـوې سیاهۍ پرتـه بـل څـه نـه دي پاتـه، یـو عجیـب وحشت لاس راکـړ، د دې جرئت مي نـه درلـودی چـي سترگي لـه هغې تـوري نقطـې واړوم. ټوله هیله مي هماغه نقطه وه. لکه څوک چي بیده وي غوښتل مي نارې ووهم، خو آواز مي نه ختی، غوښتل مي چي ولاړ سم، سپور سم او په هغو پسي ولاړ سم، خو د حر کت کولو قدرت مي نه درلودی، د ډبرې غوندي وچ او بې حر کته وم. کله چي له هغه حالته راووتم هوا تیاره وه داسي مي حس کړه چي یوه گرمـه سـاه مي له سر سره خیژي او یو شی مي له غاړې څخه موښلي.

له بیرې لر گي غوندي وچ سوم، خو ځله دا عمل تکرار سو، تر څو اوږې مي هم درنې سوې. د ستر گو تـر کونجونو مـي ورتـه و کتل او ومي لیدل چي آس دی. داسي و لکه د ټولي نړۍ ځواک چي مي مرستې ته راغلی وي، مړه بدن تـه مي روح راغلی، یوه شېبه ډار او وهم راڅخه ولاړی، د آس سر مي راکش کړ او پر سر او ستر گو مي مچ کړ، هغه هم د بیابان لـه تیارې او ډاره سخت ببېر بدی.

ډار بدلي ماشوم غوندي يې ځان راپوري موښلوی او پخپلي گرمي ساه يې زما لاسونو او بدن تـه ناز ور کوی. تـر یـو څـه راز و نیاز وروسته سپور سوم او مزل مو پیل کړ. ټول واک مي آس تـه وسپاری، لاره ور معلومه وه او د مالوف او دوستانو د سیمي پر خوا تلی، او زه يې بېولم.

د شپې تیارې مي هره شېبه حواس راتیاره کول، لکـه هوا چي درنـه سوې وي او لـه هر لوري پر ما فشار راوړي، خپل یخ لاسونه مي پر خپل بدن حسول زر ډولـه وهمناکـه شکلونه مـي پـه ستر گو کي انځور بدل.

ستر گي مي پټي کړې او مور تـه مـي پناه یووړه، نارې مي وهلې چـي مورجانـي! پـه داد مـي ورسېږه! . . . موري پـه داد مي ورسېږه!

دا چي لږ څه مي د آرام ساه واخیسته ستر گي مي روڼي کړې او ومي لیدل چي دوې روښاني نقطې لکـه پـه آسمان کـي چـي دوه ښکلي ستوري ځلیږي، لگیږي، یوه شېبه پټي سوې، بلـه شېبه بیـا وځلېـدې، بـاور مـي راغلـی چـي د یـوې آبـادۍ ډېـوه ده، آس مي پونده کړ او د روښنایي پر خـوا ور تلـم. غوښتـل مـي چـي د طبیعـت لـه وحشـت څخـه انسـان تـه پنـاه یوسـم کـه څـه هـم دښمن وي.

هر څونه چي روښنایي تـه ور نـږدې کېدلم آس کرار بدی، آن چي یو ځل خو کورټ ودر بدی، ډېره سوا او قدم يې لـه مځکي نه پورته کاوه.

غوږونه يې بوڅ نیولي ول او ژړا ته ورته ناره يې کوله.

داسي مي وانګېرله چي زموږ او د روښنايي تر منځ يو څناور دی ، او زموږ پر لور راځغلي . له ويري او اضطرابه لېوني سوم ، پر آس مي دونه ټينګار وکړ چي په غوږ کي مي ناره ور وکړه چي له خدايه ولاړ سه ، او په هوا سه ! ټوله فضا زما نارو پر سر اخيستي وه ، هر څونه چي مي وس و په زوره مي نارې وهلې ، زما لېونتوب پر آس اغېز وکړ هغه هم ششنی کاوه او باد غوندي تېز تلی ، تر داسي حاله چي دواړه له تګ او نارو څخه ولوېدو ، ستړي سوو او ودرېدو ، مګر هغه دوې ځلېدونکي ستر ګي ور کي سوې .

تر پښو لاندي مي آس لکه بلګ رېږدېدی ، ځني کښته سوم او څه موده مي يې بدن ور وموږي او ناز مي ور کړ ، يو د بل په څنګ کي تللو ، شايي خيال به يې کاوه چي زه يې تښتوم ، خو ما بېله زرپاڼي بله هيڅ موخه نه درلوده ، خپل ټول واک مي آس ته سپارلی و .

په لوړ آواز مي خبري ورسره کولې ، ورته ويل مي چي : کاشکي ستا پر ځای وای ، فريدون مي نه پېژندلای ، يا ستا غوندي چي له خپل همجنس څخه هيڅ غوښتنه نه لرې ، وای له تېروتني او خطا څخه نه اغېزمن کېدلای .

احساساتو مي پر عقل دونه غلبه کړې وه چي د انسان پر مصنوعي اخلاقو او عقايدو تکيه کول راته پر يوه ماته بېړۍ کښېنستل او په درياب کي سفر کول راته ايسېدل .

تاسي حيوانات تر موږ هوښيار ياست ستاسي ستر ګي نړۍ ډېره روښانه ليدلای سي ، ځېله لاره ښه پېژني ، دوست ته پر دښمن امتياز ورکوي . که زموږ انسانانو د ظلم او ستم لاسونه ستاسو له غاړي څخه لنډ سي ، پوهېږئ چي په څه شي پسي ځئ او څه غواړئ . موږ خواران ړانده يو او حقايق نه سوليدلای ، زموږ ستر ګي د توپاني درياب پر څنډه د هوا او هوس د څپو د غرونو په ننداره دي .

بيا مي له ځانه سره وويل :

آيا ته هم زرپاڼه لرې ، خوښه دي ده او له بېلتونه يې سوځې؟ آيا تا هم د ميني لوست ويلی دی ؟ . . .



هوا روښانه کېدله د سهار د راختلو له تصور څخه مي زړه په درېدلو سو . د سپېدو منظره ماته د ښکلا وروستی بريد دی ، د هيلو وروستني ټکی دی . سپېدې د نور هغه جنس دی چي له راختلو يې مينه په زړه کي ځليږي د ميني او وفا رنګينه هوا ده ، روڼي او ښکلي دي چي د نورو پر بدبختي يې توييږي . . .

له زرپاڼي سره تر واده وړاندي به ډېر کله له دغه نيامت څخه برخمن وم او د شپې په د سپېدو د ليدلو په هيله بيد بدم . کله چي مي وجود د عشق نور را روښانه کړ نو وروسته مي شپه او روڅ سهار و ، د سهار سپينوالی مي د خپل محبوب په بدن کي او د لمر اوړدې وړانګي مي د محبوب د وېښتانو په تارونو کي ليدلې . مګر هغه روڅ مي د سپېدو په وخت کي د زرپاڼي ننداره کوله ، کله چي د هسک تورولی کرار ـ کرار آسماني کېدی دا ډول و لکه زرپاڼه چي خپلي خوبولي ستر ګي زما پر لور کرار ـ کرار روڼوي . د لمر موسکا کټ مټ د زرپاڼي سهارنی تبسم و .

د زړه په ژبه مو خبري کولې او ټوله فضا زموږ د ميني له رموزو څخه ډکه وه .



په هغه حالت کي وم چي يوه مرمۍ نږدې پر مخکه راته وموښتله ، څو تر کمن سپرو له ليري زما پر لور را ځغستل او ډزي يې کولې . له بيري مي زړه غورځېدی څه ډول چي وړاندي بيده وم هماغسي پاته سوم چي ژر مرمۍ راپکښي وموښلي تر څو په دغه ښه حالت کي مړ سم ، سپاره زما په نظر فرښتې وې چي مرستي او ژغورون ته مي راتلل ، راورسېدل او په تلوار او لغته يې له دې ښکلي خوبه راويښ کړم ، ما زارۍ او نتواني ورته کولې چي ومي وژنئ ، سل تومانه مي له جيبه راوايستلې او ورته ومي ويل چي يوه يله ګولۍ هم زما د وژلو لپاره وکاروئ .

يو له هغو څخه چي پر زړه يې رحم راغلی ، پيسې يې له لاسه راځخه وکښلې او يوه لويه چاړه يې له ملا څخه را وايستل مګر هغو نورو دوو نه پرښووی ويل يې چي دا سپي بايد خپلي ويني وپلوري ، له هغو درو نفرو څخه هغه يو چي تر ټولو سپين ږيری و ، راځخه وپوښتل چي ته څوک يې او دلته څه کوې؟ هغه څه چي پېښ سوي ول ، ټول مي ورته وويل او ژړل مي تر څو د جهانشېر کيسې ته ورسېدم ، د سپين ږيري له ستر ګو اوښکې رواني سوې ، دا د ګلبهاري پلار و .

لاسونه يې تر شا راوتړل او پر خپل آس يې کښېنولم ، سپين ږيری زما آس پر خپل ځين وتړی او د خپلي سيمي پر لور رهي سو ، هغه دوه نفره چي يو د سپين ږيري زوی او بل يې نوکر و ، په جهانشېر او ګلبهاري پسي ولاړل ، ډېر لا نه وو تللي چي له ډېري ستوماني څخه بې وسه سوم ، او نه مي سوای کولای ځان پر ځين ټينګ کاندم ، له آسه ولوېدم او خولغتي او چپلاخي مي پر سر او بدن احساس کړې او نور نو نه يم پوهېدلی .

کله چي پر هوښ راغلم سپين ږيری مي له يوې خوني چاړې سره سر ته ولاړ و ، ويل يې : فکر مي وکړ چي که دي لاس در څخه بېل کړم نو شايي بيا به بيداره نه سې ، خپل بازو مي وليدی چي په چاړه يې راسوری کړی دی ، او ويني ترې رواني دي ، ومي ژړل چي اې طبيعته ! زما له درد او رنځ څخه څه خوند اخلې ، چي نه مي وژنې؟ . . .

ترکمن زما د نه ژړلو غوښتنه له خدايه کوله ، خو ما هيله کوله چي عذر يې ونه منل سي ، ورته ومي ويل چي درته مالومه ده چي زما ښځه چيري او چا يووړه؟ ويل هغو ترکمنيو غلو يووړه ، شايي تر مرګ وروسته يې ووينې . لکه د ده خبره چي مي نه وي اروېدلې بيا مي ورته وويل چي څنګه کېدای سي چي هغه وژغورم؟ تمسخر آميزه خندا يې وکړه او ويې ويل چي دا د ترکمنو دود نه دی چي ښکلې ښځه بېرته چاته ورکړي . مې ښوروه چي ترکمن خوند پر واخلي ، زه لکه بې هوښه سوی چي

وم او د دې لپاره چې نوري يې خبري وانه روم په لوړ آواز مې شکنځل ورته کول . پر سر او مخ يې په چلاخو وهلم خو زما حرارت نور هم د ډبرېدی او نارې مې وهلې .

ورته ومې ويل چې ستا لور هم د تبرېز د ځوانانو د عيش لپاره ډېره ښه ده ، داسې لکه په يوه لويه ډبره چې مې پر دا سر وهلی وي ، چوپ سو او سر يې کښته کړ ، تر څه ګړيه دواړه چوپ وو .

وروسته يې راته وويل چې که زما لور را پيدا کړې ، زه ستا ښځه در پيدا کوم ، نابيره مې د هيلي لمر په زړه کي وځلېدی ، ورته ومې ويل چې ته زما ښځه را وژغوره زه ستا ګلبهاره درته راولم ، دواړه هيله من وو او د جنت کيلي مو يو د بل په لاسو کي تصور کوله . دوستان او يو پر بله مهربانه سولو ، ښه دې چې ځنې وغواړم سپين ږيري له جيبه ټوکران را وايستل او د موټ زخم يې په راوتړی ، ويې پوښتلم که تا آزاد کم نو څه به ونه کړې ، او چيرې به ولاړ سې ؟ ورته ومې ويل چې هغه پر ځکړه دې هېره کړه ؟ تا ژمنه راسره کړې ده چې ښځه مې را پيدا کوې ، تر څو چې مې ښځه نه وي پيدا سوې ، له دې ځايه نه ځم ، او زه ليک کارم چې ستا لور له جهانشېره واخلي او بير ته يې درته راولي ، سپين ږيري له ډيری خوښۍ څخه لاسونه را خلاص کړل .

❀ ❀ ❀

د لاري په اوږدو کي سپين ږيري د ګلبهارې په باب خبرې کولې ، او ما غوږ نه پر نيوی ، د زړپانې د خلاصون د هيلي په نشه مست وم ، سپين ږيري يو ځل له ځان سره په ژړا وويل :

"زما ګرانې ګلبهارې ، د مور غوندې مالويه کړې ، سر مې د رمنځوی ستر ګي مي په رنجو در تورولې ، هيڅکله مې نه وهلې ، هغه روغ تېردې و چې ستا پر سر عايشه ووژنم ، تا خپل سپين ږيری پلار پر ښوی او له هغه "کاکا" سره ولاړې ! تف دربانـدي ! اوس بـه مـي څـوک مالونـه راسـاتي ؟ څـوک بـه ستا غوندې مستې او پنير راجوړوي ؟ عايشه کله کولای سي چې ستا غونـدې کمبلـه واودي ، کلنـي درې سـوه تومانـه مـي لـه لاسـه ورکړه !

اې افسوس ! که په لاس راغلې ، پښې دي در ترم چې بيا را څخه ولاړه نه سې ! زما ګرانې لورې . . . "

مژل مو کاوه او زه له خپلو خيالونو سره بوخت وم ، زرپانه مي ليدل چې ژغورلې يې وي او را وستلې يې وي ، په خيرو کالو ، په لمـر سـوځلي بـدن ، ډنګـره او کمـزورې ، پـه خيـرنـو لاسـو او لوڅو پښو يې ځان په غېږ کي را اچولی وي او سر يې زما پر سينه ايښی وي ، زاری کوي ، ژاړي او ما په بازو ګانو کښېکاږي ، زه د سـتر ګو پـه اوښکـو وښتـان ور لنـدوم ، وشـرمېږې راتـه وګـوري او زه لـه شـرمه ږغ نـه سـم کـولای . کـرار او پـه ژړا وايي :

"اجمله ! که پوهېږې چي په دې څو روځو کي پر ما څه تېر سوي دي ؟ ښايي هره ګناه چي لرم راويې بخښې !

که مي تاته هيله نه وای ، ښايي مړه سوې وای ، غرونه ، غرونه غمونه راباندي تېر سول . لويه فداکاري مي وکړه او ستا په خاطر ژوندی پاته سوم ! "

بيا مي له ځانه سره خبري کولې

ما وبخښه ، تر دې وروسته خپل ځان هېروم او په دې نړۍ کي بې له تا ، ښايي بل څوک ونه وينم ، که څه هم د هغه رنځ په وړاندي چي زما له لاسه دي د فريدون پـه کـور کـي پـر زړه يووړی ، هر څه وکړم ، ښايي ځای ونه نيسي ، تېروتنه مي وکړه بايد د فريـدون کـور تـه نـه وای تللی ، بايـد لـه هغـه څخـه مي شکايت کړی وای ، خو ولاړم چي زړه دي لـه يـوازيني دوست څخه آزار نه سي نصيحت مي ورته وکړ ، ويې منی او پښېمانه سو ، پوهېدلم چې ستا د دوستي وړ نه يم او ته هغه ته اړ يې .

زه خوار کي دونه د خپلې ښکلا په دام کي ښکېله وم چې ته مي غوښتل او نـه مـي سـوای کـولای يـوه شـېبه هـم ستا د رنګينو فکرونو د پـردو ننداره وکـړم . ستا پـه رښتينـي ژونـدون کـي ما ګډون نه کاوه . زموږ تر منځ يوه نړۍ واټن و ستا زړه همپرواژه مرغه غوښتی او زه له يوې بې اروا مجسمې پرته بل څه نه وم .

ستر ګي دي پټولې او زما اروا دي د سهار له نسيم او د ګل له بـوی څخـه غوښتـه ، د مرغـانو آوازونـه او د شُر شُري زمزمـه دي اروېدله ، په خلوت کي دي دښت او غر ليدی ، د سهار پـه سپېدو او د وربخـي پـه سپينوالي کـي راپورتـه کېـدلې ، پـه سپوږمي او ستورو کي دي ننداره کوله . . . مګر ما خپل مات وزری روح د طلايي زلفو په حلقو د ياقوتي شونډو پـه مستي او د غـاښو پـه مرغلرو بند کړی او ښېله دغه رنګونو مي بل څه نه ليدل ، يو آزاد مرغه مي د ماديـاتو په تنګ کپس کي وژلی و .

هو ! اجمل جانه ! زه د د ښوال د انځور او د بې ساه مجسمې پرته بل څه نه وم او نه مي سوای کولای چي ستا سره د فکر په نامحدوده او زړه وړونکې فضا کي والوزم ، زه د ميني وړ نه وم که يو رښتيني مينه وای نو له نورو سره د تار ځغلولو څه اړ تيا وه ، د فريـدون زړه بـه مـي نـه وړلای او تـه بـه مي په دغه بد حالت نه ګرفتار ولای .

اجمل جانه ! ته له خپلې بزرګواری څخه يو ځل بيا ما په زړه کي ومنه ، غواړم چي د تيرو جبران وکړم ، زما سره ملګری سه . . . "

د عذر غوښتلو له دغه تصور څخه مي لمر تر ستر ګو روښان سو ، بدبختـي مـي هيـري سـوې ، زرپانـه مـي بېګنـاه او مهربانـه ګڼله .

ويل مي چي ګنهکار زه يم چي فريدون مي درسره آشنا کړ ، هر څه رنځ او غم بايد زه وګالم ، ته بايد نيکي وکړې او ما وبخښې . . .

په دغه ډول خيالونو کي تلمه او که دا ډول اندونه نه وای نو ځانته به مي پام وای او له بدنې رنځه به مړ سوی وای ، لمر د ټول عالم پر سر اور پاشي ځمکه او آسمان په ښور کي ول ، لکه تا به

ويل چې اوس به دا دښت او شاړي اوبه سي او حرکت به وکړي .

کله چې چينې او د ونې سيوري ته ورسېدو اوبه مې وڅښلې او بيده سوم . خوب مې ليدی چې ترکمن زه پرې ايښی يم او تللي دي ، يو دم له وېره راوغورځېدم ، ترکمن بيده و ، ومې غوښتل چې وتښتم . خو نه مې سوای کولای چې زرپاڼه پرېږدم او زه وتښتم . ترکمن مې راويښ کړ ډوډۍ مو وخوړه او حرکت مو وکړ .

کله چې کور ته ورسېدو نو سپين ږيري مې په ځنځير پښه راوتړله او کولپ يې کړ چې ونه سم کولای گام پورته کړم کليوالي ښځې مې ننداره ته راتللې او مهرباني يې کولې . د سردار د ښځې عايشې له دغه کار څخه ښه نه راتلل او کله ـ کله به خبره دعوې ته ورسېده وروسته پوه سوم چې رخه يې راځي . زما او د سپين ږيري مجلس يوازې د زرپاڼې او گلبهارې په باب او د روغې موسل خله د خلاصون ژمنې سره ورکولې .

دونه د اولاد په مينه کې بند وچې خان زما بندي ورته ښکارېدی ، د نورو بنديانو غوندې يې په ما کار نه کاوه آن کله به يې محبت او ناز هم راکوی ويل يې چې پښه مې ځکه در تړلې ده چې ونه تښتې او هيلې مې له خان سره يونه سې .

د مينې له ځواکه يو وحشي ځناور اېل سوی او د ډېرې غوندي زړه يې لکه موم نرم سوی و ، ويل يې چې الله وردي زوی مې په جهانشېر او گلبهارې پسې تللی دی او کله چې راغلی ستا په ښځه پسې يې استوم چې پيدا يې کړي . خو که يې گلبهاره نه وه پيدا کړې نو بايد ته لومړۍ زما لور راولې . تر څو زه ستا ښځه درکړم . ما هم د مينې له شوره او د گرفتارۍ له درده بې ځنډه ژمنه ورسره کوله او هر شرط مې يې مانه ، تر درو روځو وروسته الله وردي راغلی ، دوه اوښان او څو غاتري يې په غنيمت راوړي وې ، مگر تښتېدونکې يې نه ول پيدا کړي ، خاطر مې آرام سو ځکه چې ليدل مې چې اوس هم ماته اړتيا لري او ښايي د زرپاڼې د ژغورنې لپاره يو کار وکړي .

سپين ږيري ويل چې الله وردي سبا ترکمنانو ته ورځي . زرپاڼه رانيسي او له خانه سره يې راولي ته ليک وکاږه چې زما گلبهاره راولي او له کوره ډېرې پيسې وغواړه چې خپل سر او ښځه دې په رانيسې .

بېله ليک ليکلو مې بله څه چاره لرله ، څونه چې مې وس و د زړه چاودونکو پېښو شرح مې وليکله او د گلبهارې د راگرځولو د وسايلو او د پيسو د رالېږلو سفارش مې ورکړ او ليک مې د يوه اکا چې په تبرېز کې سوداگري کوي . په نامه وليکی .

څونه سخته شپه رابانډې تېره سوه . گلبهاره مې ليدله چې له جهانشېر څخه يې اخيستې او بيرته يې راوستلې وي ، د حسرت اوښکې تويوي د پلار تر چپلاخو لاندې ژاړي او ماته وايي :

"تا وکړه ، د جهانشېر د مينې سزا دې راکړه ، آفرين ستا پر پاک زړه !"

له شرمه مې سر په لاسو کښېکښی چې دا فکر له ذهنه ليرې کاندم . هوډ مې وکړ چې کاغذ په يوه بهانه بيرته ځني واخلم . يا يې بدل کړم او يا يې د يو نامعلوم چا په نامه ولېږم ، د زرپاڼې د خلاصې تصور ، وجدان رامغلوب او چوپاوه . ليدل مې چې که ټوله نړۍ اوبه وتيسي او زموږ بېړۍ خپل هدف ته ورسيږي نو څه نه لرم .

نور بيا



## جهاني په کندهار کي . . .

چي يې وجـود وله زخمونو آشنا<br>
چي يې تـپونه ښکارېدل پر بدن<br>
ويل د ملک پر شـاوخوا پراته دي<br>
د پـلرني دښـمن خوني توپونه<br>
توري آسـونه بې حسـابه گولۍ<br>
او ورسـره دي يـو په شل توپونه<br>
غواړي غلام کړي زموږ آزاد سرونه<br>
غواړي پايمال کړي د زمريو هيواد

(ترپايه)

او کله چې دا شعر هم واورول سو دوی د شعر غونډې د وروستی شېبو رارسېدل څرگند کړه او بيا هم د تالار چاپېريال د لاسونو کړپېدو پر سر واخيست او په وړاندې يې ښاغلي جهاني وويل :

مننه ـ مننه خدای مو ونازوه ! مننه د خدای په امان !

کله چې دوی خپل ځای ته ورسېده وياند څرگنده کړه چې د اطلاعاتو او کلتور رياست له لوري به برابر سوي سوغاتونه د اوسمهال پښتو شعر ځلاند ستوري عبدالباري جهاني ته وړاندې سي . او په دې توگه د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابې يوه کندهاري خامکي غاړه ، يوه لنگۍ او يوه د گلونو گېډۍ پخپلو لاسونو ښاغلي جهاني ته وړاندي کړه او د هغوی لخوا په کور وداني سره ومنل سوه او ښاغلي بابي ته يې وويل د دې ناز څخه دي ډېره ډېره مننه کوم ، خدای مو نازوه کور مو ودان .

په دې توگه همدا درنه شعر غونډه پای ته ورسېده او د غونډې برخوال د ښاروالۍ دوهم تالار ته د چايو څښلو ته وبلل سوه او تر ناوخته ماښامه دا باندار د خوښۍ په ښېړه چاپيريال کښې وغځېد او بيا ټولو د اطلاعاتو او کلتور رياست څخه په مننه يو د بله خدای په اماني وکړه .






## اداره

☼ جمعه د کب ۲۸ مه :

د دوهمي شمېرې قول اردو د ۱۲۰۰ تنو بې وسلې سوو او يا د کاره گوښه سوو افسرانو څخه بيا و ملي اردو ته د گډون په موخه د ملي دفاع وزارت څخه د تورن جنرال جمعه ناصر په مشري د راغلي پلاوي لخوا آزموينه واخيستل سوه .

مخکي له آزمويني کندهار والي گل آغا شېرزي د اړونده بهير په اړه وينا وکړه، په آزموينه کي د ۲۰۵ مي ملي اردو مشر تورن جنرال مسلم عامر، د سهېل لوېديځ سمت د بې وسلې او ملکي کولو، د ولايتي بيا رغوني او يوناما مشرانو او استازو هم برخه لرله .

☼ شنبه د کب ۲۹ مه :

په کندهار کي د "کندهارننداره" تر سرليک لاندي د تمثيل د لوبغاړو ټولنه د هغه غونډې په ترځ کښي چي په افغان مطبوعاتي او فرهنگي مرکز کښي رابلل سوې وه جوړه سوه .

په غونډه کښي د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي هم د تياتر د ارزښت په اړه خبري وکړې او ځوانو ناټکيانو ته يې ډاډ ورکړ چي د راډيو تلوېزيون دروازې ستاسو د هنر د پراختيا په موخه پرانستي دي . وروسته څو تنو نورو هم د اړونده ټولني د جوړېدو په اړه خبري وکړې او بيا د کندهار ننداري لوبغاړو څه ناټکونه د غونډي برخوالو ته وړاندي کړه .

☼ شنبه د کب ۲۹ مه :

د امنيې قومنداني پوليسو په شاه وليکوټ کښي د گلبدين په مشري د دوی سره د نښتي په ترځ کښي څلور تنه طالبان د يوه کلاشنکوف توپک سره ونيول .

☼ شنبه د کب ۲۹ مه :

د حضرت جي بابا په سيمه کښي د سړک پر څنډه د بم په چاودنه کښي د لارويانو او هټۍ والو څخه څلور تنه چي په هغو کښي دوې ښځي او يو کوچنی و وژل سوي او ۳۲ تنه ټپيان سوه .

☼ دوشنبه د وري لومړۍ :

د نوي کال په لومړۍ ورځ په ځانګړي دود سره د شاه مسعود جنډه د هغه د ډوري تر څنگ د ملي يووالي په ويلاړ د زرگونو خلکو تر څنگ کندهار والي او سلاکار وزير گل اغا شېرزي لخوا پورته سوه .

د جنډۍ د پورته کېدو د مخه هغوی په خپلو خبرو کښي د نوي کال د رارسېدو مبارکي وويل او دا کال يې ټولو ته د نېکمرغۍ کال وغوښت . په دغه دود يزه غونډه کښي کندهار ښاروال زمري عثمان هم خبري وکړې .

د کندهار مجلې خبريال زياتوي : سږنۍ مېلې ته د همدې سيمې په زرګونو هيوادوال راغلي وه، او د لومړي ځل له پاره د وزلوبې له پاره هم لوبغاړي راغلي وه چي د مېله والو د خوښيو او ولولو په ملتيا يې وزلوبه تر سره کړله . په مېله کښي د ملي اتڼ ګڼ شمېر ډلو مېله توده ساتلې وه او تر څنګ يې ځاى ځاى د سندارا وړې او غښتي ډلي د سندارا په اورولو او نور مېله وال د نورو لوبو او خوښيو په سر ته رسېدو بوختي وې .

په مېله کښي سلاکار وزير او کندهار والي د نيالګيو ايښودلو دود هم د خوښيو او ګڼ شمېر مشرانو او مېله والو په وړاندي پر ځاى کړ .

✪ سه شنبه د وري ۲ مه :

سلاکار وزير او کندهار والي د ځارنوالي د لوى رياست د مرستيال ځارنپوه فضل احمد فقير يار سره د خپل کار په کوټه کښي وکتل او پر ځينو ستونزو او د کندهار ځارنوالۍ د چارو د سمون په اړه يې خبري وکړې .

✪ ۵ شنبه د وري ځلرمه :

د کندهار ولايت اداري غونډه د ولايت د نوي مرستيال ډاکټر غلام جيلاني همايون په مشري د منديګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه .

په غونډه کښي نوي ګمارل سوي مرستيال د غونډي برخوالو ته ور وپېژندل سو .

بيا نوي امنيه قومندان محمدايوب سالنګي د خپل کار راتلونکي لاري چاري ځرګندي کړې، وروسته په يو شمېر نورو برخو کښي پر اړونده چارو خبري او پرېکړې وسوې .

✪ ۵ شنبه د وري ځلرمه :

د سل د درملني نړيواله ورځ د همدې رنځ په لوى درملځاى کښي د يوې غونډي په لړ کښي ولمانځل سوه .

غونډي ته د همدې درملځاى مشر ډاکټر عبدالحي رازمل د دې ورځي او دغه رنځ په اړه خبري وکړې، بيا د نړيوال روغتيايي سازمان W.H.O د کندهار مشر ډاکټر شاه ولي پوپل لخوا په آسيا او مديترانې د برخي د ملګرو ملتو روغتيايي سازمان د مدير حسين الجزايري پيغام ولوستل سو او رپسې ډاکټر پاينده محمد ارغنداوي، د عامي روغتيا مرستيال ډاکټر عبدالجبار هم پر اړونده ټکو رڼا واچول .

✪ شنبه د وري ۶ مه :

د افغانستان د نړيوالي سوداګرۍ ځانګه په کندهار کښي پرانستل سوه، او ورسره جوخت د کوکنارو د بديل کښتونو پر لارو چارو غونډه هم جوړه سوه .

په غونډه کښي کندهار والي ګل اغا شېرزي د کوکنارو د بديل او د کښتګرو سره د مرستو او ملاتړ په اړه پراخي خبري وکړې . بيا د کرهڼي او مالداري وزير عبيدالله رامين وينا وکړه او د کرهڼې په پراختيا او غښتلتيا کښي يې د کوکنارو د مخنيوي لاري اړيني وګڼلې . بيا د نشه اي توکيو سره د دړېدني وزير حبيب الله قادري خبري وکړې . هغوى هم د نشه اي توکيو او کوکنارو د کښت د مخنيوي په اړه ټکي ځرګند کړه . وريسې په کابل کي د امريکا سفارت استازي په افغانستان کي د نړيوالي سوداګرۍ د ځانګې مشر حميد قادري هم د کوکنارو د کښت د مخنيوي په اړه ښه پراخي خبري وکړې .

د غونډي په وروستو کښي راغلي ېلاوي د خبريالانو پوښتنو ته ځوابونه وويل .

✪ يک شنبه د وري ۷ مه :

د ښار زياتي برخي د اشر په کار سره پاکي سوې . دغه کار چي د سهار د اوو بجو څخه د شپې تر اوو بجو پوري وغځېد په پايله کښي يې ۱۳۰ موټره ځځلي ولېږدول سوې .

کندهار ښاروال زمري عثمان وويل دغه ډول کارونه به په پرله پسې توګه سر ته رسوو څو کندهار ښار په بشپړه توګه پاک کړه سي .

✪ ۲ شنبه د وري ۸ مه :

د رومانيا هيواد جمهور رئيس بسيسکوترين په داسي حال کښي چي د هغه هيواد د وسله وال پوځ لوى درستيز جنرال بابلايو ګن، د امنيت رئيس ستر جنرال ډيګراتو کونستانتين او د امريکا د ائتلافي قواوو ځيني لوړ پوړي چارواکي هم ورسره ملګري وه د کندهار په هوايي ډګر کښي د خپلو پوځونو څخه ليدنه وکړه .

هغوى ته د کندهار په هوايي ډګر کښي د جمهور رئيس سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي او د کندهار ولايت يو شمېر نورو لوړ پوړو چارواکو هر کلى ووايه . د دواړو اړخونو په خبرو کښي د ائتلافي ځواکونو قومندان کرنيل فيدرسن، تورن جنرال عبدالرازق شېرزي

او خالد پښتون هم شتون درلود . د روماني د جمهور رئیس د افغانستان د جوړ په اړه کښي د خپلو بشري مرستو د غځېدو ژمنه وکړه .

د دوی د لوړو ولولو څخه ښاغلي شېرزي د زړه له کومې مننه وکړه .

۲ شنبه د وري ۸ مه :

د ولایتي جرګې غونډه د دې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشري په داسي حال کښي چي د ولایت مرستیال غلام جیلاني همایون شتون درلود د مدیګک په ماښي کښي جوړه سوه .

په غونډه کښي د پرله پسې تاسوبو استازو په اړه پر بګړه وسوه چي نور دي د هغوی پر ځای د هغو سیمو څخه نور کسان غوره سي .

وروسته د کندهار ـ سپین بولدک د سړک پر څرنګوالي نیوکه وسوه، همدارنګه د حج او اوقافو ریاست وړاندیز چي د پوهني ریاست لخوا یې د زړې عیدګاه و مخ ته د دوی پر مځکه دوکانونه جوړ سوي دي وڅېړل سوا او د ولایت مرستیال ژمنه وکړه چي دا کار به ودروي . د دې تر څنګ یو شمېر نور مسایل هم وڅېړل سول .

۳ شنبه د وري ۹ مه :

د خواجه حسن میوندي د زیارت د بریني دروازې چي د سلواغې د میاشتي پر ۲۲ مه نېټه د ناخرګندو کسانو لخوا غلا سوي وې د ولایتي جرګې د رئیس احمدولي کرزي د ځانګړو هڅو په پایله کښي بیرته د هلمند ولایت د موسی کلا ولسوالی په یوه کور کښي وموندل سوې او د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابې ته وسپارل سوې . د کندهار مجلې خبریال زیاتوي :

احمدولي کرزي وویل چي : د دروازو دوه غله نیول سوي او په هلمند ولایت کښي بندیان دي . د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي د دغو دروازو جوړ بده ۲۵۰ کاله مخکي وبلل او وې ویل چي په میوند کښي د ډاډمن امنیت تر راتګه به دغه دروازې د اطلاعاتو او کلتور ریاست د موزیم په ځانګه کښي خوندي وي .

۴ شنبه د وري ۱۰ مه :

د سهیل لوېدیځ سمت د پنځه کلن پرمختیایي پلان طرحه د همدې سمت د والیانو په غونډه کښي چي د مندیګک په ماڼي کښي جوړه سوې وه د یوناما، ولایتي بیا رغوني ځانګي استازي او یو شمېر نور لوړ پوړو چارواکو شتون درلود .

د جمهور رئیس سلاکار وزیر او کندهار والي ګل آغا شېرزي په څرګندونو سره پیل سوه او په دې اړه یې زیاته رڼا واچول . د هلمند ولایت مرستیال غلام محی الدین، د ائتلافي ځواکونو استازي هوک ایچار دقدریشن، د پلان رئیس محمد رحیم رحیمي او د زابل والي هم خبري وکړې او د پلان په اړه یې خپل اندونه څرګند کړه .

۴ شنبه د وري ۱۰ مه :

د پوهني ورځ د کندهار په لوبغالي کښي د زده کړیانو په پریمانه ګډون او سره ولمانځل سوه .

په دغه لویه غونډه کښي د ولایت مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون د دولتي ادارو رئیسانو او د پوهني ګڼ شمېر کارمندانو او ښاریانو برخه لرله .

غونډي ته د پوهني ریاست مرستیال عبدالصمد خاورین، یوه تن ښوونکي محمد مهدي خلیق او د ولایت مرستیال ښاغلي همایون خبري وکړې .

بیا زده کړیان د لوژ مخته په ځانګړي نظم تېر سوه، د دغه پریمانه په پای کښي د اطلاعاتو او کلتور وزارت څخه د سندارا او موسیقی رالېږل سوي ډلې سندري واورولې .

۴ شنبه د وري ۱۰ مه :

ټاکل سوي امنیتي کمېسیون د امنیه قومندان ډګر جنرال محمد ایوب سالنګي په مشري بې مسئولیته کسان بې وسلې کړل .

په دغو پلټنو کښي یو شمېر وسلې او ګولۍ هم تر لاسه سوي دي . سالنګي ویلي : دا چاري به راتلونکي ته هم غځېږي .

د کندهار مجلې خبریال خبر راکوي چي پرون نه وړمه ورځ په اوو پوستو کښي بې مسئولیته کسان بې وسلې سوې او ګڼ شمېر وسلې یې راټولې سوي دي .

همدارنګه د ۲۰۵ ملي قول اردو ګمارل سوو کسانو د ډنډ ولسوالی په شاوخوا کښي د خلکو په مرسته زیات شمېر وسلې او مهمات موندلي دي .

۵ شنبه د وري ۱۱ مه :

د دوهم لمبر قول اردو قرارګاه د بې وسلې کولو په پروګرام کښي ورګډه سوه .

دغه مراسم چي د بې وسلې کولو د پروګرام په دفتر کښي جوړ سوي وه د ولایت مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون، د دوهم نمبر قول اردو پخواني قومندان تورنجنرال عبدالخالق حلیم، امنیه قومندان مل پاسوال محمد ایوب سالنګي او د ولایتي بیا رغوني او یوناما استازو هم شتون

درلود . د دغه پروګرام له مخې په کندهار، هلمند، ارزګان او زابل کښې دوې قول اردوګانې، څلور پياده فرقې، لس لواګانې، دوه خپلواک پياده غونډونه، پنځه قطعې، هوايي ګارنيزيون، د قول اردو قرارګاه او ټوليانو کښې ۷۰۰۰ تنه افسران او سرتيري بې وسلې سوي دي او ۲۴۷۷ ميله سپکه او د ۲۵۰۰ څخه زياتې درنې وسلې چې زرهدار، ټانکونه، توپونه او هاوانونه هم پکښې وه راټولې سوي دي .

۲ شنبه د وري ۱۵ مه :

د ولايتي جرګې غونډه د منديګک په ماڼۍ کښې د دې جرګې د رئيس احمدولي کرزي په مشري د هغې جرګې د ټولو غړو په ګډون په داسې حال کښې چې کندهار والي ګل اغا شېرزي هم شتون درلود جوړه سوه .

په غونډه کښې د عابد خان د مارکېټ په اړه د دوکاندارانو عرضې ته غور لاندې ونيول سوه او د عابد خان د رابللو پرېکړه وسوه .

په ارغنداو کښې د سرکاري باغ مخته د زمان خان پر کور روغتيايي کلينيک د جوړېدو له امله پرېکړه وسوه چې هغه ته به په ښاري سيمه کښې دوې نمرې مځکه ورکړه سي . وروسته نوی امنيه قومندان د جرګې غړو ته ور وپېژندل سو .

۲ شنبه د وري ۱۵ مه :

په ده باغ کښې د ولايت مقام د مرستيال غلام جيلاني همايون او د پوهنې د سرپرست رئيس محمدولي هوتک لخوا د ښوونځي د جوړېدو ډبره کېښېښودل سوه . دغه ښوونځی د دولت د پرمختيايي بودجې څخه د ۸۰۷ مليونو افغانيو په لګښت جوړېږي او د لوست ۱۷ کوټې به ولري .

۳ شنبه د وري ۱۶ مه :

د کندهار ښار د مرکزي سړکونو د جوړولو کار د کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا په داسې حال کښې چې کندهار ښاروال زمرى عثمان او يو شمېر نورو چارواکو هم شتون درلود د پټې په پرې کولو سره پيل سو . په دغه کار کښې به د کابل ـ هرات او ښکارپور دروازو سړکان په بنسټيزه توګه د دولت د بودجې څخه د حاجي نعمت او اجمل پوپل د شرکتونو له لوري جوړ سي .

۴ شنبه د وري ۱۷ مه :

دنړيوال غذايي پروګرام W.F.P له لوري د ۱۲۰۰۰۰ - امريکايي ډالرو په ارزښت د اوبو ټانکران د کندهار ښاروال زمرى عثمان ته وسپارل سوه . د دغه ټانکرانو څخه به د سرنې ايشوول سوو نيالګيو په اوبه کولو کښې کار واخيستل سي .

۳ شنبه د وري ۱۶ مه :

د ملي امنيت ګمارل سوو کسانو د لوويالې په سيمه کښې د وسايطو جعلي کار کوونکي د يوولس مهرونو او ټاپو سره ونيول .

شنبه د وري ۲۰ مه :

د نورزو شاه برج څخه تر ډنډ چوک پورې سړک جوړولو کار د سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا د پټې په پرې کولو سره په داسې حال کښې کندهار ښاروال زمرى عثمان، د ولايتي جرګې غړي او يو شمېر چارواکي حاضر وه پيل سو . دا سړک د اتيا مليونو افغانيو په لګښت د دولت د پرمختيايي بودجې څخه جوړيږي .

شنبه د وري ۲۰ مه :

۲۲۷ تنه ساتونکي د پوليسو د ملي مرکز څخه وزګار او په يوه غونډه کښې د کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا په داسې حال کښې چې امنيه قومندان مل پاسوال محمدايوب سالنګی، د سهېل لوېديځ سمت د روزنيز مرکز قومندان مل پاسوال نصرالله ظريفي او يو شمېر نور دولتي مشرانو شتون درلود بريليکونه ورکړه سوه .

يکشنبه د وري ۲۱ مه :

د حاجي ګراني مشهور په محمدنعيم فاتحه د خرقې مباركې په جومات كښې په داسې چې كندهار والي ګل اغا شېرزي او د دولتي ادارو يو شمېر چارواكو هم وركښې برخه اخيستې وه واخستل سوه .

حاجي ګراني څو ورځې مخكې د خپل كور په مخ كښې د ناڅرګندو كسانو لخوا وويشتل سو او تر سخت ټپي كېدو وروسته مړ سو .

يکشنبه د وري ۲۱ مه :

د کندهار يو شمېر فرهنګيانو په داسې حال کښې چې د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابی هم ورسره ملګری و د ارواښاد پوهاند علامه رشاد بابا د زيارت د ګنبدې د جوړېدو د کار له بهير څخه کتنه وکړه . په دې کتنه کښې د هغوی زوی داکټر طارق رشاد او د دوی ځينو دوستانو هم برخه لرله .

۴ شنبه د وري ۲۴ مه :

کندهار والي د ۲۰۵ نمبر قول اردو ودانۍ د کار بهير چې هوايي ډګر ته څرمه جوړيږي دنږدې څخه په داسې

حال کښې ولید چې د دې قول اردو قومندان محمد مسلم عامر ورته په بېلابېلو برخو کښې ځر ګندوني کولې .

دغه ودانۍ د متحده آیالاتو په مرسته د ۶۵ ملیونو ډالرو په لګښت جوړ یږي او د روان آګسټ تر لومړۍ نېټې پورې به یې چارې بشپړې سي .

✿ شنبه د وري ۲۷ مه :

د هیواد د دوو تنو نومیالیو فرهنګي شخصیتونو هر یوه محمد صدیق پسرلي او محمد آصف صمیم د آثارو او شخصیتونو د څېړنې څېړ نغونډه په داسې حال کښې چې کندهار والي ګل آغا شېرزي او ګڼ شمېر پوهانو او قلموالو هم شتون درلود پیل سوه . د ځوان قلموال غوث الدین فروتن لخوا د هر کلي تر ویلو وروسته سلاکار وزیر او کندهار والي وینا وکړه او دا څېړ نغونډه یې د هیواد د فرهنګیانو د ملي یووالي یوه ښه بېلګه وبلل . تر خبرو وروسته یې دواړو پوهانو ته سوغاتونه ورکړه .

د استاد ګل زمان لخوا د تراني تر ویلو وروسته د کندها رولایت مرستیال ډاکتر همایون هم د دغه فرهنګي نوښت په اړه وینا وکړه او بیا د هیواد نامتو لیکوال حبیب الله رفیع ، صفیه صدیقي ، ډاکتر اکبر اکبر په وار سره خپلې لکینې واورولې . ورپسې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي د څېړ نغونډې د ارزښت او موخو په اړه هراړخیزه څر ګندوني واورولې ، غونډه د شپې تر ناوخته وغځېده .

✿ یکشنبه د وري ۲۸ مه :

د دوو تنو فرهنګي شخصیتونو د ژوند او آثارو څېړ نغونډه د پر ېکړه لیک په لوستلو پای ته ورسېده .

د دغه څېړ نغونډې دوهمه ورځ چې استاد محمد آصف صمیم ته ځانګړې سوې وه . پوهاند سیال کاکړ ، استاد حبیب الله رفیع ، محمد عارف غروال ، ډاکتر طارق رشاد ، لال پاچا ازمون ، سید ګلاب سباوون او عزت الله ځواب خپلې لیکنې واورولې .

بیا د استاد ګل زمان لخوا په سندارا کې د سندرو د تر اورولو وروسته د اسدالله غضنفر مقاله الیاس وحدت او د شهرت ننګیال مقاله غوث الدین فروتن ولوسته .

وروسته استاد محمد آصف صمیم هم خپله خبرې وکړې او د څېړ نغونډې په وروستي برخه کښې پرېکړه لیک د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي لخوا ولوستل سو او تر هغه وروسته مشاعره د شپې تر نیمايي پورې وغځېده چې ګڼ شمېر شاعرانو ورپکښې شعرونه ولوستل .

✿ یکشنبه د وري ۲۸ مه :

د کندهار د لېسو د دوولسمو ټولګیو ۲۵۴ تنو زده کوونکو علمي یون پیل کړ .

دغه زده کړیان د ولایت په مالي لګښت د زابل ، غزني ، میدان وردګو ولایتونو د لارې کابل او بیا شمالي ولایتونو ته ځي .

د دوی سره کندهار والي ګل اغا شېرزی او یو شمېر چارواکي هم ملګري دي .

✿ یکشنبه د وري ۲۸ مه :

په کندهار کښې د کوکنارو د کښتونو ماتول پیل سوه . چې په لړ کښې یې د ارغنداو ناګهان ، ډنډ او دامان په ولسوالیو کښې په سلګونو جریبه ځمکه د دغه ناوړه بوټي څخه پاکه سوه .

✿ ۲ شنبه د وري ۲۹ مه :

د کندهار د لېسو زده کړیان چې علمي یون یې پیل کړې دی نن مازدیګر کابل ته ورسېده او د پوهنې د وزیر لخوا ورته هرکلی وویل سو . او بیا د ښاغلي شېرزي مېلمستون ته ستانه او د هغوی له لوري دوی ته په تیاره کړې مېلمستیا کښې یې ګډون وکړ .

✿ چهار شنبه د وري ۳۱ مه :

د حضرت محمد ﷺ د ټېکمرغه میلاد په درناوي د خرقې مبارکې په جومات کښې د علماوو شورا لخوا لویه غونډه جوړه سوه . په دې غونډه کښې د ولایت د مرستیال ډاکتر همایون ، د اطلاعاتو او کلتور د رئیس ښاغلي بابي پر موجودیت سربېره زیاتو ښاریانو او علماوو هم برخه اخیستې وه .

غونډې ته د علماوو شورا رئیس مولوي عبدالله فیاض ، ملا محمد یار سعیدي ، شیخ طاهري او مولوي عبدالحي اخندزاده ویناوې وکړې او د آنحضرت ﷺ د غوره اخلاقو او ښېګڼو په اړه یې روښانه څر ګندوني وړاندې کړې .

غونډې د مازدیګر لخوا د شپې تر ناوخته د مولوي عبدالرب اخندزاده په جومات کښې دوام درلود .

✿ چهار شنبه د وري ۳۱ مه :

د کوکنارو د کښت ماتولو د بریالي بهیر په اړه پراخه غونډه د مندیګک په ماڼۍ کښې په داسې حال کښې چې د کورنیو چارو وزارت د نشه اي توکیو سره د دربدني مشر ډګر جنرال محمد داوډ ، د ولایت مرستیال غلام جیلاني

همايون، د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي او د ټولو ولسواليو ولسوالان او امنيه قومندانان هم ناست وه جوړه سوه . په غونډه کښې د کوکنارو د کښت زيانونه څرګند او په له منځه وړلو کښې يې د مشرانو همکاري وغوښتل سوه .

✿ ۵ شنبه د غوايي اوله :

د کندهار د زده کوونکو علمي سير او يون تر بلخ ولايت پوري ور سېد . په دغه يون کې د کندهار ښار د دوولسمو ټولګيو ۱۵۴ تنه زده کوونکي ګډون لري .

د دغو زده کوونکو د سفر موخه د افغانستان د بېلابېلو قومونو تر منځ يووالي او د ملي پيوستون ټينګښت دی، له همدې امله نن د بلخ ولايت د مشر تابه پلاوي لخوا د دوی په وياړ د مزارشريف په عروس هوټل کښې غونډه جوړه سوې وه چې د همغه ولايت مرستيال محمد ظاهر وحدت دغو زده کوونکو ته هر کلي ووايه او دا يون يې د ملي يووالي او پيوستون په ټينګښت کښې ارزښتمن ګام وګاڼه .

د يوه بل خبر له مخې د کندهار زده کوونکي د جوزجان ولايت د آقچې ولسوالي ته هم ورسېدل، هلته ولسوال حاجي قيوم او يو شمېر نورو چارواکو ورسره وکتل او د کتنې په پای کې د کندهار زده کوونکو لنګۍ او د آقچې خلکو چپنې يوه او بل ارخ ته د سوغاتونو په ډول ورکړې .

بيا زده کوونکو د بلخې رابعې د لېسې او د بالاحصار د تاريخي سيمي څخه ليدنه وکړه په وروسته يې کې مزارشريف ته په رارسېدو سره د شاه ولايتمآب د روضې څخه هم ليدنه وکړه .

✿ جمعه د غوايي دوهمه :

د کندهار د ښوونې او روزنې سرپرست رئيس حاجي محمدولي هوتک د يوې ترافيکي پېښې له امله په حق ورسېد (انا لله و انا اليه راجعون) .

ښاغلی هوتک څو ورځې وړاندې د کندهار د بېلابېلو لېسو د دوولسمو ټولګيو د زده کوونکو او څو تنو ښوونکو په مشري په يوه علمي سفر باندې د هيواد شمالي ولايتونو ته سفر کړی و، چې نن يې د بلخ ولايت څخه د کابل پر لوري د راتلو پر مهال د خنجان په سيمه کې په يوه ترافيکي پېښه کښې خپل ژوند له لاسه ورکړ .

✿ يکشنبه د غوايي ۴ مه :

د کندهار فرهنګي جرګې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د رئيس عبدالمجيد بابي په مشري د زرغوني انا د زيارت د بيا رغوني د کار څخه ليدنه وکړه او څيني هغه نيمګړتياوې چې په کار کښې موجودې وې مسئولينو ته ور په ګوته کړې . د دغه زيارت د رغوني چارې د ولايتي بيا رغوني د دفتر لخوا د -/۱۱۰۰۰۰ _امريکايي ډالرو په لګښت د ايګل ساختماني کمپنۍ لخوا مخ ته وړه کيږي .

✿ يکشنبه د غوايي ۴ مه :

په کندهار کښې د ولايتي بيا رغوني د ټيم لخوا د روغتيايي بنسټيزو زده کړو پنځه مياشتنی کورس پای ته ورسېد . او په هغه غونډه کښې چې له دې امله د منديګک په ماڼۍ کښې جوړه سوې وه لومړی د کندهار والي ګل اغا شېرزي خبرې وکړې او د بيا رغوني د ټيم د مرستو څخه يې مننه وکړه . بيا د ښاغلي شېرزي لخوا د کورس ښوونکو ته ستاينليکونه او د طب پوهنځي سلو تنو محصلينو ته چې د دې کورس ګډون کوونکي وه برې ليکونه او طبي لوازم ووېشل سوه .

✿ دو شنبه د غوايي ۵ مه :

د ولايتي جرګې غونډه د جرګې د رئيس احمدولي کرزي په مشري د منديګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه . د جرګې د غونډې په پيل کښې د ولسي جرګې د ټولټاکنو په اړه خبرې وسوې، بيا د يوناما د دفتر لخوا د سهېل لوېديځ سمت د ټولټاکنو له پاره ټاکل سوی مشر اندي کيمبل او د کندهار د برخي مسئول الينډ ريګن په دې اړه څرګندونې واورولې .

هغوی وويل هغه کسانو چې د رايې ورکونې پاڼې نه دي تر لاسه کړي د جون په مياشت کښې به د يوې مياشتې له پاره وخت ورکړه سي څو کارتونه تر لاسه کړي . وروسته پر يو لړ نورو مسئلو هم غور وسو .

✿ شنبه د غوايي ۱۰ مه :

د مې لومړۍ نېټه د ترې د کار ګرانو د پيوستون او پاخون ورځ د کار او ټولنيزو چارو د رياست لخوا په داسې حال کښې چې د ولايت مرستيال ډاکټر غلام جيلاني همايون او د يو شمېر دولتي او نا دولتي مؤسسو استازو هم شتون درلود د خانګړي غونډې په لړ کښې ولمانځل سو .

✿ يکشنبه د غوايي ۱۱ مه :

په لوی کندهار کښې د فرهنګي چارو د پرمختګ او د فرهنګي کړيو او سرېو تر منځ د تفاهم او همغاړيتوب په موخه د کندهار زياترو اديبانو او ليکوالانو يوه ګډه غونډه درلوده او د فرهنګي کار کوونکو تر منځ پر بېلابېلو ستونزو خبرې وسوې او په دې چارو کښې د پرمختګ له پاره د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، ډاکټر طارق

رشاد، ډاکټر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، فضل محمد پنهان، عبدالمالک همت، انجینر عبدالباقي پوپل، د راډیو ټلویزیون آمر محمد داود احمدي، جمال الدین یاور، عبدالقدیم پټیال او سعید زابلي خبري وکړې، او د ټولو لخوا ټینګار وسو چې د ځیلي سیمي او خلکو د ژبې او کلتور د پیاوړتیا له پاره به ګډ او نه ستړې کېدونکې کار وکړي او پر بکره وسوه چې دغه غونډې دې په چارو کښي تر یوې مثلي پولي پوري وغځیږي.

✪ دوشنبه د غوایي ۱۲ مه:

په کندهار کښي د اېتز یکایي قواوو د سیمه ایز بند څخه د کندهار، ارزګان او زابل ولایتونو یو شمېر افغان بندیان په هوایي ډګر کښي خوشي او کندهار والي ګل اغا شېرزي ته وسپارل سول.

دغه ۱۵ تنه بندیان درې میاشتې مخکې د ملي اردو او ائتلافي ځواکونو لخوا نیول سوي او تر څېړنو ورسته بې وباله بلل سوي وه هغوی د ځاتونو نیول د ځایي او ځاني دښمنیو لامل وبلل. د ارزګان یو تن بندي تورجان وویل: زما څخه یوه سیمه ایز قومندان /۵۰۰۰ ـ افغانۍ غوښتې او که یې ورنکړم د طالب په نوم به مې امریکایي ځواکونو ته ورپېژني.

وروسته ښاغلي شېرزي د دغو بندیانو د خوشې کېدو څخه خوښي څرګنده کړه او هر یوه ته یې ۱۰ زره افغانۍ او کالي ورکړه.

✪ دوشنبه د غوایي ۱۲ مه:

په کندهار کښي د ائتلافي ځواکو پر موټر باندې د میوې تصدۍ پر سړک د ولایتي بیا رغوني د دفتر مخکې د ماین چاودنه وسوه.

دا چاودنه هغه مهال وسوه چې د امریکایي قواوو څلور ارغړي پوښل سوي موټران د ګزمې په ډول د هغه سړک څخه تېر بدل.

✪ دوشنبه د غوایي ۱۲ مه:

د ولایتي جرګې اوونیزه غونډه د منډیګک په ماڼۍ کښي د دې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشرۍ په داسې حال کښي چې کندهار والي ګل اغا شېرزی هم شتون درلود جوړه سوه.

غونډې ته د ولسي جرګې د ټولټاکنو د ولایتي ځانګې د مشر الین لخوا د همدې بهیر په اړه څرګندوني وسوې او بیا یې د جرګې د غړو پوښتنو ته ځوابونه وویل.

همدارنګه غونډي ته د پنجوایي ولسوالي استازي د همدې ولسوالۍ د سړک د جوړېدو نیمګړتیاوې په ګوته کړې. خو په اړه یې سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي ورته د منلو وړ ځوابونه ورکړه او ژمنه یې ورکړه چې د ښه ډول لرونکي سړکان به جوړ سي.

همدارنګه د ژړۍ او معروف د ولسوالیو استازو هم د سړک د نه شتون له امله وړاندیزونه وکړه، او ښاغلي شېرزي یې د ستونزو د هواري ژمنه ورکړه.

✪ ۴ شنبه د غوایي ۱۴ مه:

د زرغوني انا د ګنبدې د بیا رغوني تر بشپړتیا وروسته د امریکا د متحده ایالاتو د لوی سفیر زلمي خلیلزاد لخوا په داسې حال کښي چې کندهار والي ګل آغا شېرزي، د اطلاعاتو او کلتور وزارت مرستیال نصرالله ستانکزي، د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزي، د انګلستان سفیري مارسیدن، د ولایت مرستیال ډاکټر همایون، اداري رئیس غلام فاروق فرهمند، د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي، امنیه قومندان ایوب سالنګي، د دولتي ادارو مشرانو، جهادي شخصیت ملا نقیب الله اخوند او زیاتو دیني علماو او د سیمي مشرانو او سپین ږیرو شتون درلود پرانست. دغه کار د بیا رغوني د ولایتي ډلي لخوا د ۱۱۰۰۰۰ ـ امریکایي ډالرو په لګښت بشپړ سوی دی.

په غونډه کښي ملا نقیب الله اخوند، کندهار والي ګل اغا شېرزي، د ولایتي بیا رغوني د ډلي مشر او زلمي خلیلزاد خبري وکړې.

ګل اغا شېرزي د سوي مرستي څخه مننه وکړه. خلیلزاد د کار د بشپړتیا پر اړتیا او د زرغوني انا پر لوړ شخصیت او د افغان ولس پر یووالي او تاریخي برم ته د ځان رسېدو په اړه خبري وکړې.

د ویناوو په وروستي شېبه کښي هغه پټې پرې سوه چې د زیارت په دروازه کښي ځای پر ځای سوې وه او د ودانۍ کار د ټولو لخوا وکتل سو او ځیني ټکي د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي له لوري د کار مخته وړونکو ته د سمون له پاره ور په ګوته سوه.

وروسته مېلمانه د منډیګک ماڼۍ ته ولاړه او خلیلزاد په مطبوعاتي کنفرانس کښي د خبریالانو پوښتنو ته ځوابونه وویل.

✪ ۴ شنبه د غوایي ۱۴ مه:

د تکړه شاعر او لیکوال عبدالباري جهاني په ویاړ د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست په نوښت د مشاعرې

پر تمینه غونډه د ښاروالۍ د غونډو په لویه خونه کښي جوړه سوه .

په غونډه کښي د فرهنګي شورا غړو، اديبانو، شاعرانو، ليکوالانو او د شعر او ادب ګڼ شمېر مينه والو برخه لرله . په پيل کښي د پاک قرآن څو آيتونه ولوستل سوه وروسته دغه درنه مشاعره د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي په هغه وينا سره پرانستل سوه کوم چي و مشاعرې ته د ښاغلي جهاني او ګڼ شمېر راغلو کسانو له پاره هم هر کلي او ستړې مه سې پکښي ځای سوې او هم د جهاني د شعرې وړتيا او د دوی د ژوند ليک په اړه په ځانګړې خوند او رنګ سره خوندور ټکي ځای سوي وه وويل سوه .

بيا ښاغلي ډاکټر طارق رشاد د جهاني په شعر کښي د هغه پر شعري سمبولونو وړغږېد او مننه يې وکړه چي د اطلاعاتو او کلتور رياست توانېدلی چي داسي يوه غونډه رابولي . وروسته عبدالقديم پتيال د جهاني د شعري ژباړو په اړه وړغږېد او بيا څو تنو ځوانانو هر يوه حسن يار، پتيال، جرس، ستوري او انيس خپل شعرونه واورول او بيا نورمحمد صاحبدل دوه شعره د هارمونيم سره د سندرو په ډول واورول او په دې توګه وار ورسېد ښاغلي جهاني ته چي د چکچکو په بدرګه سره راولاړ او تر يوه ګړي زيات يې خوندور نوي او د پر ښه ښه شعرونه واورول .

هغوی د اطلاعاتو او کلتور د رياست څخه مننه وکړه چي دا دريم کال دی چي زما له پاره د شعر د دغسي يوې غونډې په جوړېدو کښي پېرزوينه کوي . مشاعره د ماښام د لمانځه پر مهال د چايو په خوړلو سره پای ته ورسېده .

✿ ۵ شنبه د غوايي ۱۵ مه :

اداري غونډه د منديګک په ماڼۍ کښي د کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشري جوړه سوه . په غونډه کښي په دولتي ادارو کښي د اصلاحاتو، په سيمه کښي د ډاډمن امنيت او دولتي ملکيتونو د خوندي ساتلو په لاره کښي هر اړخيزه خبري وسوې .

په غونډه کښي د امنيې قومندانۍ هغه مځکه چي مځکي د ميا عبدالحکيم روغتيايي پروګرام ته د کلينيک د جوړېدو له پاره ورکړه سوې او د ودانۍ کار يې د پر ځنډېدلی پر بکړه وسوه چي هغه دې بيرته امنيې قومندانۍ ته وسپارل سي .

✿ ۵ شنبه د غوايي ۱۵ مه :

د املاکو ټاکل سوې جرګه ګۍ د کندهار والي ګل اغا شېرزی په مشرۍ د منديګک په ماڼۍ کښي د املاکو او ملکيتونو د ساتني په موخه غونډه وکړه . دغه جرګه ګۍ په دې نژدې وکښي د ښاغلي شېرزي په نوښت د کرهڼي، املاکو، ښاروالۍ، ښار او کور جوړولو، حقوقو، کاډسټر، د دولت د قضايااوو او حج او اوقافو د ادارو د استازو څخه جوړه او د املاکو په اړوند په ټولي ستونزي څېړي .

✿ شنبه د غوايي ۱۷ مه :

د کندهار ښار د بيا رغوني په لړ کښي د کندهار ښار د درې کيلومتره سړک د جوړولو کار د کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا د پټۍ په پرې کولو سره پيل سو . دغه سړک د دولت د پرمختيايي بودجې څخه د ۵۰ ميليونو افغانيو په لګښت د جاپان د يوه شرکت لخواجوړېږي . په دې مراسمو کښي کندهار والي وويل دغه سړک به د ارزګان د سړک او بيا به ټوله د باميان سره ونښلول سي .

✿ شنبه د غوايي ۱۷ مه :

د سرې مياشتي او سره صليب نړيواله ورځ د يوې غونډې په ترڅ کښي د سرې مياشتي د رياست لخوا د ښاروالۍ د غونډو په تالار کښي ولمانځل سوه . چي د سرې مياشتي رئيس نجيب الله برېځ، د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، د مېرمنو ټولني رئيسې صفيه عمه جاني، د محاکمو رئيس قضاوت پوه عبدالحکيم رحيمي، او د انسجام د کمېټې مسئول محمد شعيب وفا خبري وکړې .

✿ يکشنبه د غوايي ۱۹ مه :

د لوی کندهار د فرهنګي مرکې درېيمه غونډه د مرکې د مشر ډاکټر طارق رشاد په مشرۍ په NDI دفتر کښي جوړه او د اجرائيه پلاوې په توګه (۱۷) تنه د اطلاعاتو او کلتور رياست او فرهنګي ټولنو څخه غوره سوه .

✿ يکشنبه د غوايي ۱۹ مه :

د پوهني او فرهنګي سړيو او کړيو په پراخه غونډه کښي د جلال آباد بلواګري مظاهرې وغندل سوې .

دغه غونډه نن ماښام په سرپوزه کښي د حاجي عبدالله په مېلمستون کښي جوړه سوې وه چي، سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي، يو شمېر نورو چارواکو، استادانو، محصلينو او ګڼ شمېر فرهنګيانو هم ګډون پکښي درلود .

غونډې ته شېرزي وينا وکړه او د پوهني رئيس، ډاکټر طارق رشاد او سيد عبدالظاهر اغا هم د ښاغلي شېرزي سره همږغي او دغه مظاهرې يې په کلکه وغندلې .

✿ دوشنبه د غوايي ۲۰ مه :

د ولايتي جرګې غونډه د جرګې د رئيس احمدولي کرزي په مشري جوړه او په جلال آباد کښې د وروستيو خونړيو مظاهرو غندنه پکښې وشوه او د رايو په ډېرښت د يوې اعلاميې په صادرولو سره د مظاهره کوونکو او بلوا ګرو هغه اعمال چې له امله يې ۱۴ کسه مړه او فرهنګي ژېرمو، دولتي ودانيو او د ملګرو ملتو سره تړلو ودانيو ته زيان اوښتي په کلکه وغندل سوه .

✿ شنبه د غوايي ۲۴ مه :

د ۳۳ ولايتونو د خلکو استازي چې شمير يې د ۲۰ تنو ښځو په ګډون ۱۷۰ تنو ته رسېدی د ملي پيوستون د پياوړتيا په موخه کندهار ته راورسېده . هغوی ته د پله باغ په سيمه کښې د يو شمېر دولتي چارواکو او د ولايتي جرګې د مشرانو او استازو لخوا هر کلي ووېل سو . تر لږ دمې او چايو څښلو وروسته يې د منډيګک په ماڼۍ کښې په هغه لويه غونډه کښې برخه واخيسته چې ورپکښې کندهار والي ګل اغا شېرزي د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي، د دولتي ادراو رئيسانو، ديني عالمانو او قومي مشرانو او سپين ږيرو شتون درلود .

غونډه د پاک قرآن د سپيڅلو اياتونو په لوستلو پيل سوه بيا د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي په پرانستونکې وينا کښې راغلو مېلمنو ته د هر کلي سره جوخت د ملي يووالي پر اړتيا وږغېد ،وروسته د هبيتات د مؤسسې مشر انجينر عبدالباقي پوپل په دې اړه په پښتو او دري وينا وکړه . وروسته کندهار والي ګل اغا شېرزي پخپله وينا کښې پر ملي يووالي ټينګار وکړ . وروسته احمدولي کرزي د کليو د پراختيا رئيس انجينر احمدشاه پيرعلي، د علماو د شورا رئيس مولوي عبدالله فياض هم خبري وکړې .

د مېلمنو څخه ډاکټر غلام فاروق، صالحې، حاجي مدير او يو شمېر نورو سيمه ايزو استازو خبري وکړې . بيا برخوالو په هغه مېلمستيا کښې برخه واخيسته چې د کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا د دوی په وياړ جوړه سوې وه . تر ډوډۍ وروسته بيا هغوی خرقې شريفې ته ولاړه، پر څلورو بجو د کندهار والي ګل اغا شېرزي، د ولايت مشرتابه غړو په ګډون د بابا ولي ﷺ د زيارت څخه ليدنه وکړه . هلته توت، شلومبې او يخې اوبه د ښاروالۍ لخوا ورته جوړ سوي وه او د نوو تأسيساتو په برخه کښې کندهار والي ښاغلي شېرزي او ښاغلي بابي ځر ګندونې ورته کولې . وروسته هغوی باغ پل ته ولاړه او په هغه مېلمستيا کښې يې برخه واخيسته چې د ولايتي جرګې د مشر احمدولي کرزي لخوا ورته جوړه سوې وه . تر ډوډۍ وروسته ښاغلو شېرزي، کرزي، بابي پوپل، فياض، صفيه عمه جاني، انجينر پير علي او رغبت ته سوغاتونه ورکړه سوه . ښاغلي شېرزي يې ډېر اړ کړ څو د هغوی څخه رخصت واخلي او سهار ولاړ سي . هغوی تر ټينګار وروسته د دوی وړانديز ومانه او د هر يوه له پاره يې د دوی د تللو پر مهال د سوغاتو د ورکړې لارښوونه وکړه .

✿ شنبه د غوايي ۲۴ مه :

د تياتر او سينما د ډګر د وتلي شخصيت عبدالواحد نظري پښتو فلم هجرت د يوې لويې غونډې په ترڅ کښې په خوشبخت تالار کښې ننداري ته وړاندې سو . غونډې ته د کندهار ننداري مشر فضل احمد انيس، د غونډې د ارزښت په اړه وږغېد بيا د لوی کندهار د فرهنګي مرکې مشر ډاکټر طارق رشاد د پښتو تياتر د لرغونتوب په اړه خپله ليکنه ولوسته وروسته کندهار والي ګل اغا شېرزي د ښاغلي نظري د هنري استعداد ستاينه وکړه او د دوی زيار يې د دې سيمې د فرهنګي او هنري سروالانو د لاري دوام وګاڼه .

په غونډه کښې د اطلاعاتو او کلتور رياست او نورو فرهنګي ټولنو د پيغامونو تر اورولو وروسته د ښاغلي نظري ژوند ليک او د سينما او تياتر په اړه ځينې نوري ويناوې هم وسوې .

او بيا ښاغلي نظري هم وينا وکړه او د کندهار د فرهنګپالو د مينې او د وستې څخه يې مننه وکړه وروسته هجرت فلم ننداري ته وړاندې سو .

✿ ۴ شنبه د غوايي ۲۸ مه :

د ملي امنيت کار کوونکو د ماله جات په سيمه کښې درې تنه ورانکاره هر يو عبدالهادي د عبدالکريم زوی، بسم الله د ولي محمد زوی او عبيدالله د حاجي مولاداد زوی د چاودېدونکو توکيو، لاسي بمونو، کلاشينکوفونو، توپک چو، مخابرو، درانه ماشين ګنو او ګڼ شمېر ګوليو سره نيولي دي .

همدارنګه يې رحمت الله نومي چې د ليک له مخي يې د يوه تن سوداګر څخه پيسې غوښتي وې او هم يو بل تن چې د يخ کارېز په سيمه کښې يې د سړک پر سر ماين ايښووه نيولي دي .

✿ ۴ شنبه د غوايي ۲۸ مه :

د کوچنیانو د تښتوني د مخنیو د لارو چارو په اړه د بشري حقوقو د اداري لخوا یو ورځنی علمي سیمینار جوړ سو . چې د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي، د پوهني رئیس حیات الله رفیقي، او همدارنګه د قومنداني، ملي امنیت، د کار او ټولنیزو چارو، څارنوالی، محکمې او نورو ادارو او استازو هم برخه پکښې لرله . سیمینار د بشر د حقوقو د خپلواک کمېسیون د مشر ښاغلي انجینر نورزي په وینا پرانستل سو او بر خوالو غوښتل سوې موخه پخپلو لیکنو او ویناوو کښې څر ګنده کړه .

۴ شنبه د غوایي ۲۸ مه :

د ولایتي بیا رغوني څانګي کندهار پوهنتون ته د یو میلیون افغانیو په ارزښ قرطاسیه او د هغه سره تړلي توکي د کندهار پوهنتون سرپرست رئیس پوهنیار انجینر شاه محمود بري ته په داسي حال کښي چي د پوهنتون استادانو او کارکوونکو هم شتون درلود وسپارل .

۵ شنبه د غوایي ۲۹ مه :

کندهار والي ګل اغا شېرزي په داسي حال کښي چي د یو شېر دولتي ادارو مسئولین ورسره ملګري وه پرون د کندهار ښار د صنعتي پارکونو له سیمي څخه لیدنه وکړه .

په دغه کتنه کښي د صنعتي پارکونو مسئول د جوړو سوو فابریکو په اړه څر ګندوني وکړې وروسته ښاغلي شېرزي لارښوونه وکړه هر هغه چا چي مځکي د فابریکو او اقتصادي تأسیساتو په موخه تر لاسه کړي او تر اوسه یې فابریکي نه وي باندي جوړي کړي نورو سوداګرو ته دي ورکړه سي . څو خلکو ته د کار زمینه برابره او اقتصادي پیاوړتیا رامنځته سي .

همدارنګه ښاغلي شېرزي د ښورندام، نوي قشلې، او د هغه په شاوخوا سیمو کښي د هغو دولتي مځکو څخه چي د اشخاصو لخوا پخپل سر قبضه سوي دي لیدنه وکړه او مسئولینو ته یې لارښوونه وکړه چي تر راتلونکي سه شنبې پوري دي پروګرام جوړ او د هغه له مخي دي دولتي مځکي د هغوی له واکه وایستل سي .

۵ شنبه د غوایي ۲۹ مه :

د ملي تفاهم او یووالي د ټینګښت په موخه د شلو ولایتونو څخه د راغلو سلګونو دیني علماوو او روحانیونو پراخ سیمینار جوړ سو .

دغه پراخه غونډه تر غرمې وروسته د خرقې مبارکي په جامع جومات کښي په داسي حال کښي چي د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل آغا شېرزي شتون درلود د قرآن په مبارکو آیتونو سره پیل سوه . بیا د علماوو شورا مرستیال خطیب محمد حق پخپله پرانستونکې وینا کې د دې غونډي ارزښت او اړتیا څر ګنده کړه .

وروسته د هرات ولایت د دیني علماوو د شورا رئیس او د مرافعه محکمې رئیس مولوي خدای داد په خپلو خبرو کښي د سیمینار د جوړ ېدو ستاینه وکړه او بیا یې د ملي یووالي او تفاهم د لاري د پراختیا غوښتنه او د بې اتفاقیو سخته غندنه وکړه .

وریسې کندهار والي ښاغلي ګل اغا شېرزي هم د موضوع په اړه په پوره وضاحت وړغېد هغوی د تېرو کلونو وراني، بې اتفاقي او دښمني په ګوته کړې او وې ویل که عالمانو ټولنه سمه لارښوونه کړې وای نو د غه وراني به نه رامنځته کېدلای . هغوی وویل : د عالمانو څخه غوښتنه کوم څو نور بې توپیره پاته نه سي او د دین د احکامو سره سم خلکو ته لاره روښانه کړي .

وروسته څو تنو نورو عالمانو د باغران د رئیس په ګډون د خپلو ولایاتو په استازیتوب ویناوي وکړې او د سولې، ملي پخلاینې او سرتاسري امنیت د اړتیا په اړه یې څر ګندوني واورولې . غونډه د یوه پریکړه لیک د لوستلو په واسطه پای ته ورسېده .

شنبه د غوایي ۳۱ مه :

د طالبانو د تیري واکمنی پر مهال د کورنیو چارو وزارت معین ملا عبدالصمد خاکسار ولسي جر ګې ته د ځان غوراوي ځانګړې پاڼه ډکه څو د دولت لخوا د ملي پخلانې، بشپړې سولې او هیوادني جوړ په ویلاړ ولس او هیواد ته کار او خدمت وکړي .

**متلونه :**

**د کبر کاسه نسکوره ده**
**کبرجن د خدای دښمن دی**
**د کبر اخیر زوال دی**
**کبر د ناپوهۍ او هلاکت پیل دی**
**د کبر سر ټیټ دی**
**کبر داسي خواره دي چي اخیر خپل زېښونکی وژني**
**خوار کبرجن د خدای دښمن دی**

منثور شعر:

# زما د امید گل

اروانښاد عبدالرؤف "بېنوا"

پسرلی دی، د لویو غرو لمني شنې او گلونه غوړېږي....

زرکي په غرو او بلبلان په باغو کښې د نوي موسم زېری کوي

پر دښت در بېدي گلونه د سهار و نسیم ته، ښه راغلې وايي.... ډک ډک سیندونه بهېږي ـ.... هرراز بوټي شنه او زرغونه ښکاري ....... خوښه خوشحالي ده.

وړوکي ماشومان غورځي، هوسېږي ـ نوي زلمیان په خورا ورین تندي، د قدرت ښکلي مناظر گوري د شیرین وطن د طبیعي آزادي فضا په ننداره بوخت دي ..... اما ویش ـ دانو څه ....؟

زما د امید گل، لا هغسي مړاوی، مړ ژواندی دی .....!

آ ـ د سهار ښکلې نسیمه ! ......، د بیدو گلونو ویښوونکې!

ته هم په ظاهري نقش او نگار غولېږې ـ....؟

زما د امید و خازه گل ته چي د ژمي په ژلیو ژوبل ژوبل شوی، هیڅ گذر نه کوې.....؟

هو ـ زه بدبخته یم، هیڅ کړه وړه مې نشته ......

آه..... هغه د امید گل چي ما د ژمي اوږدې شپې په خوږمن زړه کښې ساته، او د پسرلي د نسیم په امید مي تازاوه ـ اوس .....

بلې! اوس وچیږي .... ..... نو خود زه بدبخته یم!

ولي، چي اوس لا د پسرلي لومړی سر او ټوله گلونه په امید دي...... غوټې مسېږي ـ.......

اما ـ زما د امید گل مړاوی دی .... یه، یه ـ اې د پسرلي نسیمه!..... که نور څه نه وي، دا خو هم یو د هغو گلو څخه دی، چي ټول ژمی ستا د راتگ په امید ژوندی ؤ........ زما خواشني زړه ته خو وگوره!

البته امکان لري چي دا بېوزله او بې خواخوږي گل به هم یو مهال په غوړېدو راسي ـ.....

مګر ـ د زمانې د نسیم نا خوالي به هېري نه شي! لکه چي وايي:-

بلبل به خدای په گلو مور کي　　　نسیمه! ستا نیمگړي نیت مي ژړوینه

---

# پسرلی

څه ښه هوا ده　　　پاکه فضا ده

رونه دنیا ده　　　پر مور رنا ده

جار تر وطن سم

دا ښکلي غرونه　　　دا شنه دښتونه

زم ور کورونه　　　کرو هوسونه

جار تر وطن سم

دا مو وطن دی　　　دا مو مامن دی

دا مو گلشن دی　　　دا مو مدفن دی

جار تر وطن سم　　　"بېنوا"

Kandahár

Bi-Monthly Magazine of Kandahar Information & Culture Department

## د سوکالۍ پېغام

د نیلي آسمان تر وږمی کښي د بېر ښنا سینه خېد یم — د مړ کوټي ښار د وړی کښې ورونه ده بنه ولوله یم

د وروری په پلونو پل ږدم د وروری پولی ته ســـر وړم — د بندی دورخ بر نه د مه د ده ســـی کور ته ساور وړم

ســوله غواړم ســوله غواړم زه په ســوله کښي تمر ږدم — لکه برخه بر ســـر د کلو خیلی سوندی هر سحر ږدم

د کینې په اور ســــیندمه د کونړ خاخکي سبحلي — و بوالي ندرا ـــــــدلم د خاق اد کسی ســـد حلی

په وږر کسي بــه د روړمه د ســو کاله زوندون وړانکي

غوړوم بــه په ســرواوسکو د ابا ســی اد هېلو خانکي

